د ۱۳۵۲ لمریز کال
د لیندۍ میاشت
نهمه گڼه
پرله پسې گڼه ۱۶۴
د تاسیس کال ۱۳۳۹

December




# اطلاعات او کلتور

میاشتنۍ خپرونه



د اتلسمې پېړۍ په اواخرو کې افغاني فاتحین په ډېر برم د اباسین پر غاړه د لوی احمدشاه بابا تر قیادت لاندې لیدل کېږي

# د دولت رئیس د خان عبدالصمد خان شهادت ستره ضایعه وبلل

د دولت رئیس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد د، دخان عبدالصمدخان اڅکزي د ناځاپي شهادت د خبر په اوریدو سره فوق العاده متأثره شوا او د یوه پیغام په ترخ کې یې د هغه مرحوم پاته کسانو ته خپله ژوره خواشیني څرګنده کړه او دخان صاحب مړینه یې ستره ضایعه وبلل.

خان عبدالصمدخان اڅکزی د بلوچستان د پښتونخوا د حزب رئیس د لیندۍ د میاشتې په ۱۱ نیټه خپل دخوب په خونه کې د هغه بم د چاودنې په اثر چې د نامعلومو کسانو له خوا ور غورځول شوی ؤ شهید شو.

د افغانستان حکومت او خلکو د دغه مبارز لیډر او مشهور د ازادۍ غوښتونکي د شهادت له کبله، چې د پښتنو او بلوڅو خلکو د دښمنانو له خوا پیښه شوې ده، خپله خواشیني وښودل

او په دې پوره باور لري چې د ده دویاده وړ ژوند، زړه وره مبارزه او قهرمانانه مرګ به د پښتنو او بلوڅو د ازادۍ غوښتونکو په خاطر د پښتنو او بلوڅو دپاره تل د الهام منبع وي.

د یوبل خبر له مخې ښاغلي محمد داود د لیندۍ د میاشتې د ۱۳ نیټې په سهار د مرحوم خان عبدالصمد خان اڅکزي د فاتحې په مراسمو کې چې د سرحداتو د وزیر، ښاغلي اجمل خټک، او د خان محمد ایوب خان اڅکزي له خوا د شیرپور په مسجد جامع کې اخستل کیده برخه واخستل او د هغه مرحوم روح ته یې دعا وکړل.

دا نه رنګه د صدارت عظمی مرستیال ډاکټر محمدحسن شرق، د کابینې غړو، ښاغلي محمد نعیم، د جمهوري اردو زړه ورو منصبدارانو، د لوړې رتبې ملکي مامورینو، په کابل کې اوسیدونکو پښتونستانیانو، د پښتانه خلکو د مرکز او شاوخوا په زرګونو کسانو او د هغه مرحوم علاقه مندانو ګډون کړی ؤ.

د خان عبدالصمدخان اڅکزي په احترام د لیندۍ د میاشتې په ۱۳ نیټه د افغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغونه د رسمي دایرو پر سر نیم ځوړند وه.

همدارنګه دوزیرانو د عالي مجلس هغه غونډه چې د لیندۍ د میاشتې په ۱۳ نیټه د دولت د رئیس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد په ریاست جوړه شوې وه، د دغه نامتو شخصیت د ناځاپي شهادت له کبله چې یو عمر یې د پښتونستان د ازادۍ په لار کې په مبارزه تیر کړی، د دوو دقیقو چپ پاته سول.

د دغه مرحوم فاتحه د افغانستان په ګوټ ګوټ کې واخیستل شوه چې په هغو کې والیانو، محلي مامورینو، پښتونستانیانو او زیاتو خلکو ګډون کړی ؤ.



مسئول مدیر: کریم (طالب)

اداره: د شهیدانو واټ

۱۳۵۲ کال د لیندۍ میاشت

# جمهوري ملي سرود

د یوې ټولنې د ثقافت او فرهنګ معیار د هغې ټولنې د هنر او ادب په څېر کې ارزیابي کېږي. او د یوې ټولنې هنر او ادب چې په هره اندازه انکشاف کړی وي په هغه اندازه د ټولنې د پرمختیګ په ارتقا کښې مستقیماً اغېزه کوي او د دغه انکشاف اغېزه و نورو اجتماعي پدیدو ته هم سرایت کوي.

زموږ په ګران هېواد کې چې د جمهوري رژیم په منځ ته راتلو سره په ټولو اجتماعي مؤسسو کې یو عظیم تحول راغی نو ادبي او فرهنګي مؤسسې هم د انقلاب د راڅرګندسو ادبي لیکنو غنایي او عشقي شیوه ترک وهله او په یوه ملي مترقي شیره ئې د ملي وحدت او ملیت پرستۍ لار په خوله ور کړه. هنر او ادب چې په

هغې تاریکه نظام کې خپل ارزښت بایللی وو، په خپله واقعي بڼه د هېواد په فرهنګي مؤسسو کې را څرګند سو.
په ملي انقلابي ټولنو کښې ښکاره خبره ده چې

هنر او ادبیات د بر مرحمه او دنده وظیفه په غاړه لري چې دا وظیفه نو د ملي وحدت تدریس او د میت تأمینول دي څو د ټولنې فرد د ملي افتخاراتو په راژوندي

کولو او ساتلو کښې برخه واخلي.
دا دی د انقلاب په دې روښانه دوره کې هنر او ادبیاتو یو بل مترقي ګام مخ په وړاندې واخیستی او د هېواد د ملي افتخاراتو ته ئې یو نوی روح ور وبښه. د ملي افتخاراتو د جمهوریت ملي سرود دی چې د لومړي ځل لپاره د اردو د نوي صاحب منصبانو د شهادتنامو

د ویشلو په غرض په حربي پوهنتون کې زموږ د ملي قاید ښاغلي محمد داود د تشریف راوړلو په ترڅ کې د حربي پوهنتون د باندونو له خوا وږغول سو او د راډیو

افغانستان په سټډیوګانو کې ثبت سو. له دغې ورځې وروسته هره شپه د راډیو افغانستان پروګرام وله ملي سرود په ښه غږ وسره سرته رسیږي.

د دغه ملي سرود شعر د هېواد د نامتو لیکوال ښاغلي بېنوا دی چې کمپوز ئې د استاد بریښنا او ښاغلي عبدالله خواسوی دی او د ډاکتر رهبري ئې استاد سلیم سرمست او ننګیالي پر غاړه لري.
د ملي سرود د ناسي سر شاره الفاظ او کلماتو غښتلې ترکیب سوی دی چې په هغه کې د افغان ولس شهامت

او غرور له ورایه ښکاري او د افغانیت، جمهوریت او ملي وحدت ستر شعارونه هغه جرسونه دي چې د یوه باعظمته مترقي افغانستان زیری ورکوي

د ملي سرود یو ډېر غږ تونه د پالنه د ملي روح حیثیت لري چې د جمهوریت مینانو موږ ته یې ارمغان راوړی دی. هغه او د ادب او هنر علاقه مندانو دغه

ارمغان په ډېر قدر ستایلی او هغه ئې د هېواد په ادبي نهضت کې یو نیک استقبال تلقي کړی دی.

## د ملي سرود بیتونه په دې ډول دي:

څو چې د ځمکه آسمان وي
څو چې د جهان ودان وي
څو چې ژوند په دې جهان وي
څو چې پاته یو افغان وي
تل به د افغانستان وي
تل دې وي افغان ملت
تل دې وي جمهوریت
تل دې وي ملي وحدت
تل دې وي افغان ملت جمهوریت
تل دې وي افغان ملت جمهوریت
ملي وحدت ملي وحدت

# ددولت درئیس په پیغام دبشر دحقوقو داعلامیی پنځویشتمه کالیزه ولمانځل سوه

دبشر دحقوقو داعلامیی پنځویشتمه کالیزه ددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداود په پیغام د څېړونو، وېناوو او مقالو دخپرولو په ضمن کی د هېواد په فرهنګی مؤسسو کی ولمانځل سوه.

په هغه غونډه کی چی په دغه مناسبت دلیندی په ۲۹ نېټه دکابل په پوهنتون کی جوړه سوې وه دعدلیې وزیر او دملګرو ملتو دمرستو دټولنی رئیس ډاکټر عبدالمجید ددغی جهانی ورځی په مناسبت ددولت درئیس پیغام ولوست او وروسته څېړونوالانو داړوندی اعلامیې دارزښتونو په باب وېناوی وکړې. ددغه پیغام متن په لاندی ډول دی:

## ددولت د رئیس پیغام

خوښ یم چی دملګرو ملتو دعمومی دبشر دحقوقو داعلامیی دتصویب پنځه ویشتمه کالیزه په افغانستان کی افتتاح کوم.

دبشر دحقوقو او دبشر دحقوقو داعلامیی دتصویب په ساحه کی چی ددغه حقوقو د اساساتو دراولو ړنګی دی، دملګرو ملتو فعالیتونه نه دی محدود سوی. بلکه ددغو حقوقو په تدوین سربېره چی دبشر دحقوقو د دوو تړونو د منلو داختیاری پروتوکول چی په ۱۹۶۶ کال کی دملګرو ملتو دعمومی ټولنی دخوا تصویب شو دوام پیدا کړی.

دبشر دحقوقو د کمیسیون تاسیس دبشر په حقوقو پوری دمربوطو اختصاصی منابؤو او فعالیتونو دقیقی مطالعی دباره په دغه برخه کی زیات پرمختګونه میسره کړی دی.

افغانستان دملګرو ملتو د بشر دحقوقو په فعالیتونو او چارو کی زیاته علاقه ښکاره کړې ده او دبشر دتړونو په تدوین او د دغه د کمیسیون په چارو کی یې فعاله برخه اخیستې ده.

دمملکتو دسرنوشت دحق دټاکلو دپرنسیپ په تدوین کی او وروسته د دغه اصل دپېژندګلوی دمربوطو فعالیتو په برخه کی دبشر داساسی حقوقو په لړ کی دیوه اساسی حق په حیث دافغانستان نقش ډېر مؤثر او دتقدیر وړ ګرځېدلی دی.

دبشر دحقوقو دفرعی کمیټی او اقلیتونو ملاتړ دپیشنهاد په اساس چی افغانستان دهغه غړی دی دملګرو ملتو عمومی ټولنی دبشر دحقوقو دانکشاف لس کلنه دوره تصویب کړه او ټاکل سوی ده چی دغه لس کلنه دوره دبشر دحقوقو داعلامیی دتصویب د ۲۵ کالیزی په لمانځلو سره شروع سی.

هیله لرم ددغه لس کلنی دوری دپروګرام موفقانه تطبیق دنړی دټولو هېوادو په مرسته دبشر دحقوقو په انکشاف، دبشری کرامت دساتنی او بالنتیجه دبین المللی سولی او امنیت په تامین کی عمده تاثیر ولری.

افغانستان دبشر دحقوقو دانکشاف دلس کلنی دوری دپروګرام څخه په پوره ملاتړ سره تیار دی چی داساسی اهدافو په تامین کی دانکشاف دلس کلنی دوری دروحیې سره مطابق لازمی همکاری وکړی او په دغه برخه کی به فعاله برخه واخلی.

هیله لرم هغه کسان چی تر اوسه پوری دخپل سرنوشت دحق دټاکلو څخه محرومی پاتی دی په راتلونکی نږدی وخت کی دخپل دغه اساسی حق څخه په استفاده سره بریالی سی.

هیله لرم هغه حکومتونه چی دنژادی تبعیض پالیسی مخ په وړاندی بیایی خپلی وظیفی دبشر دحقوقو داعلامیی مطابق درک کړی او دمحرومو خلکو داساسی حقوقو په غصبېدو کی دی اصرار نه کوی.

# د پښتونستان ملي زعيم خان عبدالصمد خان په شهادت ورسيدی

میړو نه مړي خو نومونه یې نه مري او د تاریخ غیږې ته سپارل کیږي. د جهاني شخصیتو په تېره بیا د ملي او سیاسي شخصیتو

ژوند تل د یوې ترازیدي او خواشینۍ ډرامې په څیر تمثیلیږي داسې اشخاصو ته د ژوند خوند په نسبت هیڅ ارزښت نه لري، بلکه هغوی خپل ژوند د اجتماع په خدمت کې وقف کړی وي او د ټولنې ترقي، رفاه او سعادت یې

ستر هدف گرځولی وي.

خان عبدالصمد خان هم یو د هغو سترو شخصیتونو څخه ؤ چې

دقام د خپلواکۍ په لار کښې یې داسې سرشاره مبارزه وکړه چې په دې لار کې یې سر ورکړ او هیڅ ډول بند او ځور د هغه مبارزه نه کړه شنډه. د انګریزي استعمار څخه تیسوالی پسې بیا تر پاکستاني استعمار پورې هیڅ

قدرت د دغه شخصیت د مبارزې څخه نه سو گرځیدلای. هغه یې نو د بلوڅي گاندي او م خان ته وگڼي.

خو له بده مرغه څرنګه چې د ملي مبارزینو پاره تل د ارتجاعي قوتو له خوا شومې دسیسې طرح کیږي نو خان صاحب هم د یوې د هغې ناوړه ارتجاعي دسیسې په واسطه د لیندۍ په یو ولسمه نیټه د نا معلومو کسانو له خوا د لاسي بم په غورځولو سره د ضرب په کوټه کې شهید سو.

د افغانستان حکومت او خلکو د دغه نامتو آزادي غوښتونکي رهبر د شهادت له امله ډیره خواشیني څرګنده کړې او د دغه مرحوم مړینه یې د پښتنو او بلوڅو د دښمنانو یوه شومه دسیسه بللې ده.

ارتجاعي عناصر په دې فکر کښې دي چې د داسې شخصیتو لکه محمد صادق کاسي او خان عبدالصمد خان په وژلو سره به د پښتنو او بلوڅو ترمنځ نفاق راولي مگر داسې نه ده، دا دسیسې تر پخوا زیاتې د پښتنو او بلوڅو ترمنځ د اتحاد موجب گرځیدلي دي او مشترک دښمن یې په ترا پیژندلی دی. د میړو

مړینه مبارزه نه وژني بلکه مبارزین ژیږوي او د دوی مبارزه به تر هغه وخته دوام وکړي څو پښتانه او بلوڅ خپل حقوق د استعمار له منګولو تر لاسه کړي.

## د خان عبدالصمد خان سوانح

عبدالصمد خان د حاجي نور محمد خان زوی او په ۱۳۲۸ هجري قمري کال کې د محکوم جنوبي پښتونستان د گلستان په سیمه کښې وزیږیده او خپلې لمړنۍ زده کړې یې په گلستان او کویټه کې سرته ورسولې.

خان عبدالصمد خان په ځوانتوب کښې کوښښ کاوه چې د علم او پوهې د زده کړې په څنګ کښې خلکو ته د خدمت مصدر شي ده له خپلې مینې او کام سره د زړه علاقه درلوده، او د خپل عمر زیاته برخه یې

خلکو ته په خدمت کولو کې تیره کړه.

عبدالصمد خان د خپلو خلکو د خواشینونکي حال په درک کولو سره له ۱۹۲۸ کال څخه

په سیاسي فعالیتو لاس پورې کړ او له خان محمد ایوب خان اڅکزي سره یې یو ځای د انجمن وطن د ټولنې بنسټ کېښود په ۱۹۳۱ کال کښې یې هند ته سفر وکړ او هلته یې په لاهور کې د کانګرس گوند په اجلاسیه کښې گډون وکړ.

په ۱۹۳۶ کال کښې خان صمد خان د استقلال اخبار خپور کړ او په هغه کښې یې د خپلې ملي اتحادي منعکس کړې؛ په ۱۹۴۸ کال کښې د پاکستان حکومت د ده فعالیتو ته غیر قانوني ویلل او د گوند له برجسته غړو سره

بندي کړل شول. د پاکستان حکومت په ۱۹۵۰ کال کښې د ده مطبعه ضبط کړه او د ده د ړلي په مقابل کښې ئې له ظلم او تشدد نه کار واخیست.

خان عبدالصمد خان له فرصت څخه په استفاده کولو د ګورنر جنرال غلام محمد د حکومت په زمانه کښې په ۱۹۵٤ کال له سیاسي ګوندونو او پښتنو سره تړون په نامه جوړه کړه کله چې د پښتونستان مشر خان عبدالغفار خان په ۱۹۵٦ کال کښې نیشنل عوامي ګوند د وازدي مخالف ګوند په حیث جوړ کړ نو خان صاحب خپله ځانله له هغه سره یو ځای کړه او د لویدیزو پښتو د ماتولو د باره ئې له خان عبدالغفار خان، مولانا بهاشاني او جي ایم سید سره خپله زوره همکاري پیل کړه.

کله چې مارشال ایوب خان په ۱۹۵۸ کال کښې په پاکستان کښې قدرت په لاس کښې واخیست نو ټول نوي خان یې د نورو سیاسي لیډرانو په څیر زنداني کړ او په ۱۹٦۸ کال کرچي نورو سیاسي طبقو د ایوب خان په ضد قیام وکړ ایوب خان د سیاسي لار څخه ووتلو په ځای کښې له بنده خلاص کړ، خان عبدالصمد خان د ۱۹۷۰ کال په انتخاباتو کښې د خپل پښتونخوا په نامه پیل سیاسي جمعیت جوړ کړ او د ایالتي کرسي په ایوالو بریالی شو.

خان اڅکزي که د برتانوي استعمار په وخت کښې او که د پاکستان د زمامدارۍ په زمانه کښې تل کوښښ کاوه تر څو پښتانه خپلو حقوقو ته ورسیږي. ده د انجمن وطن د خبرونو له لارې تل غوښتنه کوله چې بلوچستان دې د نورو صوبو په شان آزاد صوبائي حقوق ولري.

له هغه وخته چې مسلم لیګ ګوند د پاکستان حاکمیت په لاس کښې واخیست ده تل غوښتنه کوله چې مرکزي حکومت دې د خلکو دا نیاوو پوره کولو ته هڅه وکړي او عامه آزادیو ته په احترام قائل شي. عبدالصمد خان د لویدیزو پښتو د جوړیدو له لارې سره خپل مخالفت څرګند کړ او د یو نټ د ماتولو د پاره په عقیده کښې ئې تر وروستي شیبو پورې خپل دریځ بدل نه کړ او د لویدیزو یو نټ په ماتولو کښې ئې چې په ۱۹۷۰ کال کښې ترسره شو ونډه درلوده.

د خان صاحب د شهادت خواشینوونکې پیښې چې د آزادۍ د لارې یو مبارز او د محکومو پښتونستان سترمشر څخه پښتانه او بلوڅ محروم کړه ډیر ئې خواشیني کړي دي.

خان عبدالصمد خان اڅکزي د لهمنځه تللو پیښه چې د پښتنو او بلوڅو د دښمنانو په وسیله پیښه شوې ده د پښتنو او بلوڅو د مبارزو په تاریخ کښې به د خواشینوونکې پیښې په حیث ثبت شي.

پښتانه او بلوڅ عقیده لري چې د خان عبدالصمد خان په څیر د سترو میړونو مبارزې او قربانۍ به د دوی د مجاهدو او مبارزو سرمشق وي او د پښتنو او بلوڅو کام پرستان به د خپلو حقوقو غوښتنو په لاره کښې تر پخوا زیات د خپلو شریکو دښمنانو خوا ته متوجه کړي.

# یو بله خواشیني پیښه

د قوس ۲۱:

د راولپنډۍ د نوائی وخت او د کراچي د مشرق ورځپاڼو د خبر سره سم د ملي عوامي ګوند رهبر حاجي محمد صدیق چې په مرکزي محکوم پښتونستان کې د جمهوري متحده محاذ د منشي وظیفه هم په غاړه درلوده د څو ورځو په محبس کې په ناڅاپي ډول وفات شو.

مرحوم محمد صدیق خان څه موده مخکې د پښتونستان د آزادۍ د مبارزې او د پښتنو او بلوڅو د بشري حقوقو د غوښتنې په تړه پیښور کې د پاکستان د حکومت له خوا نیول شوی او د څو ورځو په محبس کې بندي کړای شو.

خبر وائي چې د پښتونستان ستر مشر جناب خان عبدالغفار خان د مرحوم محمد صدیق خان د جنازې په مراسمو کې ګډون وکړ.

د پښتونستان مشر په دغه مناسبت یوې لویې ولسي غونډې ته په خپله وینا کې وویل که د پاکستان حکومت غواړي چې پوه شي چې پر پښتنو باندې مسلط کاندي نو موږ به یې هر ډول کله ونه منو او د اولس د حقوقو د ژوندي کولو د پاره به مبارزې ته د پخوا په شان دوام ورکړو.

جناب خان عبدالغفار خان وویل دی به د اولس د پښتنو او هغوی د حقه حقوقو د لاس ته وړلو په لاره کې یو ځل بیا هم په خپله د مبارزې میدان ته ورځي. او د پښتنو او بلوڅو هر وګړي ته به خپل پیغام په خپله ورسوي.

د مرحوم محمد صدیق خان د جنازې د ښخولو په مراسمو کې د ملي عوامي ګوند مشر خان عبدالولي خان د هغه ګوند مشرانو، غړو او د جمعیت العلما اسلام د ګوند مشرانو او غړو نه علاوه د سیمې زیات شمیر خلکو هم ګډون کړی ؤ.

د پښتونستان ستر مشر د پښتنو د حقونو د غوښتنې په لړ کې د مرحوم محمد صدیق خان مبارزه او قربانۍ ستایلې ده.

په غونډه کې د ملي عوامي او د جمعیت العلما اسلام د ګوندونو د مشرانو او ډاکتر فدا حسین مولانا بجلیګر له علاوه نورو مشرانو هم خبرې وکړې.

په هغه ملي غونډه کې چې د ملي عوامي او جمعیت العلما اسلام د ګوندونو او د متحد جمهوري محاذ د مشرانو له خوا د پیښور په چوک یادګار کې په دغه مناسبت جوړه شوې

وه. د ملي عوامي ګوند او د جمعیت العلما اسلام مشرانو په خپلو خبرو کې مرحوم محمد صدیق خان ته د مغفرت غوښتنې او د هغه پاتې کسانو ته د تسلیت ورکولو په ترڅ کې د هغه مرحوم ناڅاپي مړینه د پښتنو د ژورې اندیښنې او خفګان سبب وګڼله او د هغه د آزادۍ غوښتنې سرښندنه یې وستایله.
(ب)

د بشري حقوقو د نړۍ والې ورځې په مناسبت

# د بشر د حقوقو جهاني اعلاميه

له دې کبله چې د ټولو بنيادمانو د اصلي شرافت او نه بېليدونکو مساوي حقوقو منل په دنيا کې د آزادۍ، عدالت او سولې اساس دی.

له دې کبله چې انساني حقوقو ته بې سپکه نظر کول او د هغو نه پېژندل د داسې خونړيو او ناوړه چارو سبب گرځېدلی دی چې انساني ضمير يې په عذاب اخته کړی دی او هغه دنيا چې خلک پکښې په خبرو او عقيده کې آزاد وي او له ويرې او غريبۍ څخه خلاص وي هغه د بشر د خورا لوړو ارزوگانو څخه گڼل شوې ده.

له دې کبله چې بشر د ظلم او زور په مقابل کې آخري اقدام يعنې بغاوت ته اړ نه شي ضروري ده چې انساني حقوق دې د قانون د اجرا په ذريعه وساتل شي.

له دې کبله چې د ملتونو ترمنځه د دوستانه تعلقاتو د زياتوب تشويق ورکول لازم دی.

له دې کبله چې د متحدو ملتو خلکو د انسان بنيادي حقوق ته د ده درښت او حيثيت ته او د ښځو او نارينه وو مساوي حقوقو ته په خپل منشور کې اعلان کړی او ټينگه اراده يې کړې ده چې د اجتماعي پرمختگ په لاره کې کومک وکړي او په يو ډېر آزاد محيط کې د ژوند ښه ژوندون پيدا کړي.

له دې کبله چې ملگرو دولتونو په غاړه اخيستي ده چې د متحده ملتو د مرستې په مرسته انساني حقوقو او اساسي آزاديو عمومي احترام او واقعي رعايت ته وده ورکړي.

له دې کبله چې د دې تعهد پوره اجرا کولو د پاره د دغو حقوقو او آزاديو په باره کې يو له بله ښه مفاهمه ډېر زيات اهميت لري نو ځکه اوس اسامبله

دا د انساني حقوقو عمومي اعلاميه د ټولو خلکو او ټولو ملتونو يو شريک ارمان بولي چې د هر فرد او هر ټولنې د هميشه د پاره دا اعلاميه په نظر کې ولري او کوښښ وکړي چې د تعليم او روزنې په وسيله د دې حقوقو او آزاديو احترام پراخوالی ورکړي او د ملي او د بين المللي تدريجي تدبيرونو په واسطه هم د عضو ملتونو په منځ کې او هم د هغو ځايونو د خلکو په منځ کې چې د دوی تر لاس لاندې وي د انساني حقوقو او آزاديو واقعي پېژندل او اجرا کول ميدان ته راوړي.

لومړۍ ماده: ټول بنيادمان دنيا ته آزاد راځي او د حقوقو او حيثيت له مخې سره برابر او يو شان دي. ټول د عقل او وجدان خاوندان دي او ښايي چې يو له بله سره د ورورولۍ چال چلن وکړي.

دوهمه ماده: (۱) هر څوک کولای شي چې بېله هيڅ قسم امتيازه خصوصاً د نسل، رنگ، ژبې، مذهب، سياسي عقيدې يا کومې بلې عقيدې د قومي شان د مليت، اجتماعي وضعې، شتمنۍ، زېږېدنې يا کوم بل امتياز څخه بغير، له هغو ټولو حقوقو او آزاديو څخه چې په دې اعلاميه کې بيان شوي دي گټه او برخه واخلي.

(۲) د هيڅ چا سره به د سياسي، اداري، قضايي يا د هغه د وطن مقامي يا بين المللي وضعيت له کبله څه فرق نشي کولای که څه هم د هغه ملک خپلواکي يا د قيموميت لاندې وي يا د بل په اختيار کې وي او يا د بلې کومې ادارې د قيد لاندې وي.

دريمه ماده: هر څوک د ژوندانه، آزادۍ او د ځان د امن او سلامتۍ حق لري.

څلورمه ماده: هيڅوک په غلامۍ او مريتوب کې نشي ساتل کېدای او د مريانو پلورنه او پېرودنه په هر شکل منع ده.

پنځمه ماده: هيڅوک ته به د انسانيت او بشري شئونو څخه

مخالف عذاب یا سزا نه ورکول کیږی او نه په ورسره د ظلم او بی عزتی سلوک کیږی.

شپږمه ماده: هر څوک حق لری چی حقوقی شخصیت ئی په هر ځای کی د یو انسان په عنوان د قانون په مقابل کی وپیژندل شی.

اوومه ماده: ټول خلک د قانون په وړاندی یو برابر دی هر بنیادم حق لری چی په مساوی صورت بیله کومی استثنا د قانون له حمایت نه ګټه او فایده واخلی دغه شان د هر فرد د فرق کولو او تحریک په مقابل کی چی ددی اعلامیی څخه مخالف وی هر څوک په مساوی ډول د قانون له حمایت نه ګټه اخیستلای شی.

اتمه ماده: که څوک د چا په اساسی حقوقو چی د اساسی قانون یا کوم بل قانون په وسیله دده حق پیژندل شوی وی تجاوز او تیری کوی نو دی حق لری چی د عدالت صلاحیت لرونکو محکمو ته رجوع وکړی او په دی وسیله دده حقوق وساتل شی.

نهمه ماده: هیڅوک به خپل سر بی سببه نیول، بندی کول یا د ملک نه ایستل کیدای نشی.

لسمه ماده: هر څوک په کامل مساوات حق لری چی دعوه ئی په یوه مستقیله او بیطرفه محکمه کی د انصاف له مخه په ښکاره ډول تر غور لاندی ونیول شی او د خپل محکمه په دده د حقوقو یا الزاماتو یا د هغو تهمتونو په باره کی چی ده ته متوجه شوی وی یوه پریکړه کوی.

یوولسمه ماده: (۱) که څوک په یو جرم متهم شو ـ تر څو چی دده په باره کی یوه عمومی دعوه چی دده د باره پکښی د دفاع ټول ضروری شیان تیار وی جاری نشی او ددی مجرم ثابت نکړای شی تر هغه پوری بیګناه ګڼل کیږی.

۲- د داسی کار په کولو یا نه کولو چی هغه د کولو په وخت کی د ملی او یا بین المللی حقوقو له مخی جرم نه ګڼل کیږی هیڅوک محکومیدای نشی ـ په دی شان هیچا ته د یو جرم کولو په وجه له هغی جزا نه چی د جرم د کولو په وخت کی د هغه جرم د پاره مقرره وی زیاته او سخته جزا نه ورکوله کیږی.

دولسمه ماده: چائی چی هیڅوک د بل چا په خصوصی ژوندون، کورنیو چارو، د استوګنی ځای او خط کتابت کی په خپل سر مداخله ونه کړی او نه د چا په شرافت، نوم او عادت حمله وکړی. د دغی مداخلی او حملو په مقابل کی هر څوک د قانون د حمایت حق لری.

دیارلسمه ماده: (۱) هر څوک حق لری چی د ننه په هر ملک کی په آزاد صورت تګ راتګ وکړی او د استوګنی ځای غوره کړی.

۲- هر څوک حق لری چی له یو ملک او حتی له خپل ملک څخه هم ولاړ شی او یا خپل ملک ته بیرته راشی.

څوارلسمه ماده: (۱) هر څوک حق لری چی د ځوریدلو، په عذابیدلو او تعقیب کیدلو څخه د سر پناه ځای ولټوی او نورو ملکونو ته پناه یوسی.

۲- که چیری د عمومی او غیر سیاسی جرم په وجه یا د متحدو ملتونو د مقاصدو او اصولو د مخالفت کولو له کبله د یو چا تعقیب کیږی نو په دی صورت کی له دغه پورته حق څخه څوک فایده نشی اخیستلای.

پنځلسمه ماده: (۱) هر څوک د تابعیت حق لری.

۲- هیڅوک په زور له خپل تابعیت څخه یا د تابعیت د بدلولو له حق څخه نشی محروم کولای.

شپاړسمه ماده: (۱ هر بالغ سړی او ښځه حق لری چی د نژاد ـ ملت، تابعیت او مذهب له قیده څخه په غیر یو له بل سره واده وکړی ښځه او خاوند د ازدواج په ټولو چارو کی یو له بله مساوی حقوق لری.

۲- باید دی چی کوژده د ښځی او سړی په کامله رضا او آزادی سره وشی.

۳- کورنی د ټولنی اساسی او طبیعی رکن دی او حق لری چی د ټولنی او دولت له حمایې څخه ګټه واخلی.

اوولسمه ماده: (۱) هر څوک هم ځانله او هم په شریکه د مالکیت حق لری.

۲- هیڅوک په خپل سر د مالکیت له حق څخه نشی محروم کولای.

اتلسمه ماده: هر څوک حق لری چی د فکر وجدان او د مذهب

له آزادۍ څخه برخه واخلي او
هر چا ته د مذهب او عقیدې د
ظاهرولو او هم د مذهبي تعلیماتو
او د پیروانو د رسمو اجرا کولو حق
حاصل دی.

هر څوک له دې حقوقو څخه
هم خاله هم له نورو سره په شریکه
او هم په خصوصي او هم په عمومي
ډول فایده او برخه اخستلای شي.

نولسمه ماده: هر څوک د عقیدې
او بیان د آزادۍ حق لري په دې
کښې دا هم شامله ده چې په خپله
عقیده پریشاني و نه لري.
او هم دې د اطلاعاتو او افکارو
په حاصلولو او بیا په ټولو ممکنو
وسیلو سره بې له کوم ځاني لحاظ
څخه د هغو په خپرولو کې آزاد وي.

شلمه ماده: (۱) هر څوک حق
لري چې په آزاد ډول - په امن
او رارۍ سره ټولنې او ډلې
جوړې کړي.

۲- هیڅوک په زور په یوه ټولنه
یا یوه ډله کې نه شي شاملولای.

یوویشتمه ماده: (۱) هر څوک
حق لري چې د خپل ملک د عمومي
چارو په اداره کې شخصاً په خپله
او یا د آزادو انتخاب شوو
نمایندګانو په واسطه ګډون او
شراکت وکړي.

۲- هر څوک حق لري چې په
مساوي شرطونو سره د خپل ملک
په عمومي چارو کې برخه
واخلي.

۳- د حکومت د قدرت منبع او
اساس د خلکو اراده ده. باید دې چې دا
اراده د رښتینو او دوره وارو انتخاباتو
په وسیله څرګنده شي.

باید دې چې انتخابات په عمومي
او مساوي ډول په پټو رایو اخستلو
یا داسې کومه بله طریقه وکړای شي
چې د رایو آزادي پکښې کامله وي.

دوه ویشتمه ماده: هر څوک د ټولنې
د غړي په توګه د اجتماعي امنیت حق لري
او کولای شي چې د ملي کوښښونو او
بین المللي همکارۍ په وسیله خپل
اقتصادي، اجتماعي او علمي حقوق چې
د ده د شخصیت له مقام او آزاد پرمختګ
د پاره لازم وي د خپل ملک د تشکیلاتو
او منابعو د رعایت سره سم لاس ته راوړي.

درویشتمه ماده: (۱) هر څوک حق
لري چې کار وکړي په آزاده صورت
خپله یو کار غوره کړي د کار د پاره
په انصاف برابر او ښه خوښې شرطونه
وغواړي او د بیکارۍ په مقابل کې ئې
حمایت او ساتنه وکړای شي.

۲- هر څوک حق لري چې د مساوي
کار په مقابل کې بې له کوم فرق نه مساوي
اجرت واخلي.

۳- هر څوک چې کار کوي د انصاف
سره سم د ښه خوښې اجرت د اخیستلو
حق لري. خو داسې اجرت چې دی او د ده
کهول پرې د انسان شئونو سره سم
ژوندون وکړای شي او د ضرورت په وخت
کې ورته د اجتماعي حمایت هر قسم وسیلې
حاصلې وي.

٤- هر څوک حق لري چې د خپلو
منافعو د ساتنې د پاره د نورو سره
اتحادیه جوړه کړي او هم په اتحادیو
کې شامل شي.

څلیروېشتمه ماده: هر څوک
د تفریح، استراحت او هوساینې
حق لري. په تیره بیا سره د حقوقو
اخستلو، د کار په ساعتونو کې
د معقول محدودیت او وخت په وخت
رخصتیو حق د ارزښت وړ ګڼل کیږي.

پنځه ویشتمه ماده: (۱) هر څوک
د داسې ژوند کولو حق لري چې
خوراک، پوښاک، ځای، مسکن
صحي وسیلو او نورو له حیثه په کښې
د ده او د ده د کورنۍ سلامتي او
آرامي حاصله وي.
د غه شان هر څوک حق لري
چې د بیکارۍ، ناروغۍ، کوډتون
ژوبلتیا، عیبي کیدو په وخت
یا د داسې کومې بلې غیر اختیاري
پیښې په وخت کې چې د ژوند وسیله
ئې له لاسه ورکړې وي د ژوندانه د
مناسبو شرطونو څخه ګټه او
فایده واخلي.

۲- میندې او ماشومان د خاص
کومک او پاملرنې حق لري.
ټول کوچنیان چې د نکاح په واسطه
پیدا شوي وي او که بې نکاح له
اجتماعي ژوندانه څخه ګټه او برخه
اخیستلای شي.

شپږویشتمه ماده: (۱) هر څوک
د زده کړې او روزنې حق لري-
باید دې چې لږ تر لږه په ابتدائي
او بنیادي تعلیماتو پورې مربوطه
زده کړه او روزنه رایګانه وي-
ابتدائي تعلیم به اجباري وي.
باید ده دې چې د کسب او کار

زده کړه عمومي او مومني ـ ښاغلي چې د عالي زده کړې لار په کامل مساوات سره د هر چا

د پاره خلاصه وي چې هر څوك تري د خپل استعداد سره سمه ګټه واخيستلای شي .

۲ـ باید دی چې ښوونه او روزنه په داسې صورت وي چې د هر چا انساني شخصیت د خپل کامل

رشد اندازی ته ورسوي او د بشر د حقوقو او آزادیو احترام کلك او ټينګ کړي .

باید چې ښوونه او روزنه د ټولو ملتونو او د ټولو نژادو او مذهبو د بیلو بیلو ټولنو ترمنځ

دوستي ، پېژندنه ، ښه چال چلن د مخالفو عقیدو احترام پیدا کړي او د ملتونو د سولې د ساتلو د پاره

د متحدو ملتونو د فعالیتو پراختیا ته لاره اسانه کړي .

۳ـ مور او پلار د اولاد

د زده کړې او روزنې په خوښولو کې له نورو خلکو څخه اولیت لري .

اووه ویشتمه ماده :

هر څوك حق لري چې د ټولنې په علمي ژوند کې په آزاد ډول

شریك شي ـ له هنر او فنونو څخه ګټه واخلي او په علمي پرمختګ او د هغه په فایدو کې برخه

واخلي .

هر څوك حق لري چې د خپل کسب هنر او علمي آرزو د مادي او معنوي فایدو له حمایت څخه ګټه او فایده واخلي .

اته ویشتمه ماده : هر څوك حق لري چې د یو داسې نظام جوړېدل وغواړي

چې په اجتماعي او بین المللي لحاظ سره د دې اعلامیې بیان شوي حقوق او آزادۍ را پیدا کړي او د عمل ډګر ته یې

راوباسي .

نه ویشتمه ماده : (۱) هر څوك د هغې ټولنې په مقابل کې مکلف دی

چې د ده ته یکښې د خپل شخصیت آزاد او کامل رشد میسر وي .

۲ـ هر څوك د خپلو حقوقو او آزادیو

په اجرا کولو او له فایدو اخیستلو کې یوازې د هغو محدودیتونو او قیودو تابع دی چې د قانون په وسیله د نورو

د حقوقو او آزادۍ د مراعات او پېژندنې په غرض او همدارنګه د اخلاقو د تقاضا او د عمومي نظم او ښېګڼې د رعایت د پاره

د یوې دیموکراتي ټولنې په شرایطو کې د ټولنې وضع شوي دي .

۳ـ دا حقوق او آزادۍ په هیڅ وخت

کې د متحدو ملتو د اصولو او مقصدونو په خلاف نشي اجرا کیدای .

دېرشمه ماده : د دې اعلامیې له یوې

مادې څخه هم باید داسې مطلب وانه خیستل شي چې په دې کې یوه دولت یا یوې ټولنې یا یوه فرد ته دا حق شته

چې په دې اعلامیه کې کوم بیان شوی حق یا کومه آزادي له منځه ویاسي او یا په دې لاره کې څه فعالیت وکړي .

د متحدو ملتونو عمومي ټولنې د ۱۹٤۸ ع د دسمبر په لسم (۱۹ قوس ۱۳۲۷) د بشر د حقوقو بین المللي اعلامیه ومنله او هغه یې اعلام کړه .

د دې تاریخي اقدام نه وروسته عمومي ټولنې د ټولو

عضو ملکونو څخه وغوښتل چې د دغې اعلامیې متن دې خپور کړي او په خپلو مدرسو او تربیوي

موسسو کې دې د دغه اعلان د خپرولو او نشرولو تیاری ونیسي مګر د خپلو ملکونو او علاقو

د سیاسي وضعیت له کبله دې یکښې هیڅ تصرف نه کړي . د دې اعلان ټول متن د متحدو ملتونو په

پنځو رسمي ژبو یعنې اسپانوي انګلیسي ، چیني ، روسي او فرانسوي ژبو خپور شوی دی چې د

عمومي ټولنې له خوا منل شوي دي .

||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||||

## ژوند لذت

ژوند لذت او خوند په څه کې دی . باید د فعالیتو سره ، ځان مخ

سره او د آه او افسوس پر ځای

د سعي او همت په قدرت سره هغه مشکلات چې د کامیابۍ په لاره کې یې څنډ اچولی دی له منځه یوسو .

د حقیقت څخه وخیال ته پناه وړل د غم په ژنګون کښېناسته د غم نه درمان کوي هغه څوك

چې د خپل سعادت او کامیابۍ سره علاقه لري باید په هیڅ عذر او بهانه سره د حقیقت څخه ونه تښتي

او هر ساعت چې د موفقیت د کسب په لاره کې تېر شي ورځ له منځه واخلي .

# د تاریخ یوه ګوټه

فضل محمد (پنهان)

# په هندوستان کی د مغولی امپراطوری مؤسس او د پښتنی نهضتو بیداریدل

د ربیه برخه

## دوهم د خوشحال خان نهضت

دخټکو مشری د پښتو پلار
خوشحال خان ته دخپل پلار شهباز
خان، نیکه یحیی خان او ور نیکه

ملک اکوړی څخه په ارث پاته
سوې وه او ده خپل دغه قیادت او
رهبری د توری او قلم په زور د

مغل د دربار په رسمیت پېژندلی
وه. په دی اساس د شاه جهان په
دربار کی دده ستر شخصیت چېر

تود هر کلی کېدی. خو کله چی
اورنګزیب منځ ته راغی د هغه
د بی کفایتی په اثر او د هغه د ظلم

او استبداد له امله خوشحال خان
خپل روابط له مغولی دربار
سره قطع کړل او د هغه دربار په

مقابل کښی یی په مبارزه لاس
پوری کړ. څو په ۱۶۶۴م کال
خوشحال خان لاس ته ولی دهلی

ته واستول سو

له دغه ورسته د خوشحال خان
په افکارو کی کلی بدلون راغی
او ددی تغیر په فضا کښی خوشحال

دهغوی یوه داسی دنیا جوړه کړه چی هغه
هر پښتون د خپل قوم ماضی چېرته
لیدلای سوای.

د ۱۶۶۷ کال په اواخیرو کښی
یوسفزیو پښتونو کی دهمدی پښتونو
په وخت کښی خوشحال خان ته اجازه

ورکړه سوه چی وطن ته ولاړسی. څه
وخت چی خوشحال خان د دهلی څخه
پښتونخوا ته راغی نو دده د راتګه

سره سم نوی صوبه دار «مهابت خان»
د پاچا د حکم مطابق د یوسفزیو په علاقه
(لنګرکوټ) کښی د عسکری چوڼی

جوړولو اراده وکړه. مغولی حکومت
فکر کاوه چی که د یوسفزیو په منځ کښی
دغه عسکری چوڼی جوړه سی نو په

حکومت وکولای سی چی خپل مخالفین
یعنی یوسفزی سرکوبه کړی. له دی امله
نو خوشحال خان نور نسوای کولای چی

د یوسفزیو په مقابل کښی مغولی استبداد
ومنی ځکه چی یوسفزیو د خوشحال خان
دبند په وخت کښی د خوشحال خان سره
چېره مرسته کړی وه. همدا یوسفزی

وه چی د خوشحال خان بچی یی
د یرغمل په ډول د خوشحال خان سره
وساتل او اورنګزیب ته یی

دا موقع ور نه کړه چی هندوستان
ته یی بندی واستوی. د خوشحال
خان د پاره دا یو داسی احسان و

چی د هغه څخه ئی هیڅ کله نه سوای
خلاصولای. د بل خوا اورنګزیب
نهروضی سیاست او د جهان ګشایی

څه بوته او بالاخره د ظلم او
استبداد له لاری په هیواد کی
د اقتصادی بحران د ځپه کولو

کوښښ دا لویو تود و نفرت او غضب
لا تیز کی. د مغولی ضد په او یه
امپراطوری خصوصاً د پښتنو

په سیمو کښی د بیګانه حکومت په
مقابل کښی د خلکو کرکه هم ددی
اندازی ته رسیدلی وه چی هر

جریان څخه کړل د مغولی استبدادی
دربار پر ضد په یوه واحد صف کی
سره ودریږی خوشحال خان دخپل
وخت تجربه کار او لوی سیاستمدار و

چې د سوریانو، لودیانو، او روښانیانو، تاریخ ته ئې په ځیر ځیر مطالعه کړې وه او په خپل

شعر کې د پښتنو د تیر برم یادونه داسې کوي:

د بهلول او د شیرشاه خبرې
اورم
چې په هند کښې پښتانه وو بادشاهان
شپږ اووه پیړۍ ئې هسې بـاد
شاهي وه
چې د رست خلکو وو په دوی پورې
حیـران

او د بلې غزا ئې دخلکو نفرت او د دربار ضعف هم لیدی. خوشحال خان

نه یوازې د پښتو د شاعرۍ سره اشنا و بلکه د پښتنو د تاریخي عظمت سره چې په هند کښې ئې

درلودې هم اشنا و او د دوی د کار نامو څخه پوره اګاه و. مهابت خان د کابل صوبه دار چې

د خوشحال خان په نیولو کښې ناکامه شوی و. نو د هغه پرځای مغولي باچا محمد امین د امیر

جمله زوی د کابل د صوبه دار په حیث وټاکی محمد امین خان دخوشحال خان ډېر خیر خواه

د بند په وخت کې ئې د هغه سره ډېره مرسته کول. محمد امین خان دوه کاله د کابل د صوبه دار په

حیث کار وکړی. داسې معلومیږي چې په دې وخت کښې د مغولو او پښتنو ترمنځ وضع نسبتاً کراره

وه. مګر په ۱۶۷۲ کال کښې د پښتنو او مغولو ترمنځ د خیبر لوی جنګ پیښ شو دغه جنګ د محمد امین خان ملا ماته کړه

د دې جګړې زوی او اخري میرزا سلطان کربلایي په کښې وژل شوه او کوچنی لور ئې خور او مور ئې د پښتنو په لاس بندیان شوه. دغه جګړه د خوشحال خان دوو ملګرو یعنې «ایمل خان» او «دریاخان» تر قیادت لاندې وشوه.

تر محمد امین خـان وروسته اورنګزیب مهابت خان د کابل د صوبه دار په حیث وټاکی دا دریم ځل و چې دی

د کابل د صوبه دار په حیث وټاکل شو. مهابت خان دا کوښښ کاوه چې خوشحال خان د مغولو سره مرستې ته

تیار کړي خو د دوی صوبه دار کوښښونو کومه نتیجه ورنه کړه. کوم وخت چې ئې د خوشحال خان رسته حاصله نه کړه نو مهابت خان د ده په دریم زوی بهرام خان پسې شو. بهرام خان د خپل پلار څخه په دې ګیله من و چې د خټکو مشري ئې د بهرام مشر ورور اشرف خان هجري ته ورکړې وه.

د هم دې وخته څخه د خوشحال خان رزم د مغولو سره عملي شکل پیدا کوي او د لومړي ځل د پاره خوشحال خان او ایمل خان په ګډه سره د نوښار پر عسکر کوټ باندې حمله وکړه او هغه ئې مات کړ. د نوښار په جنګ پسې د مغولو او پښتنو ترمنځ په «کړپه» کښې

لوی جنګ پیښ شو. په دې جنګ کښې د پښتنو د قواوو رهبري د ایمل خان په غاړه وه. په ۱۰۸۶ هجري او ۱۶۷۵ م کښې خوشحال خان په «پرمول» کښې و هلته ئې یوه قصیده وویله چې مطلع ئې ده:

پیاله کومه راپیدا شو دا بهار
چې په هر لوري ئې ملک کړ و بو ګلزار

په دې قصیده کښې خوشحال خان د شپږو لویو جنګو ذکر کړی دی.

د ۱۶۷۵ کال د جون په میاشت کښې د مغولي استعمار افسر مکرم خان په باجوړ

باندې حمله وکړه. مکرم خان په جنګ کښې ماته وخوړه. مغولو د پښتنو په مقابل کښې زیاتې لښکر

کشي وکړې او د دې لښکر کشیو مرحله ئې پیښور ته د څو ځله په څه ئې پرمومند یوسفزو او نورو

غرنیو قبایلو حملې کولې په ننګرهار کښې اغرخان د غلجانو او نورو قبایلو پر ضد د بې رحمي

څخه کار اخستی خو دې ټولو بې رحمیو او ظلمونو تاکتیکونو ونه کړلای شوای چې پښتانه دې د دښمن

ته تسلیم کړي. ولې د هغه طلا هغه وسله وه چې داورنګزیب او مغولي امپراطور سره ئې د دښمن

په ماتولو کښې ډېره کومکه وکړه اورنګزیب چې د پښتنې سیمو څخه ډېر هلې ته ورسیدی د پښتو

قبایلو ملکانو ته ئې د ډېرو سوغاتونو په ورکولو صرف نه کو. او په دغه لار کې ئې د سلطنت په ټینګولو کښې

او ډېره تجربه هم درلوده خوشحال خان د اورنګزیب خزانو ته چې په پښتنو کښې ئې خپروله داسې

اشاره کوي.

مغولو ته چې ګورم هغه هسې
مغول نشته
د تورې وار ئې ټیر دې اوس
ورپاته یو قلم دی
پښتون په زور نیسي په فریب
په ټیټ قالر نه

په ما یې اثر نه شي دا په ما
د خدای کرم دی

«باقي په ۳۰ مخ کې»

لیکوال: م-عطایي

دوهمه مقاله

# په ملي جنبشونو کې د ادبیاتو نقش

## مصر او روم

په تېره مقاله کې مو یو په یونان کې د مصر او د مصر د کوډلې د یولوي ښاخ ادبیاتو په باب یو څه مسایل تشریح کړل په دغه جریان کې مو د اجتماعي جریانات دیو رڼا په حیث د ادبیاتو په اړخ کې توضیح کړل.

هغه مهال چې په یونان کې د (سیټه دولت) خپل حاکمیت ټینګاوه نو په روم کې هم اجتماعي تحولات منځ ته راتلل او مخود سیمې شرایطو په روم کې سپاهي ګري ته ډېر اهمیت ورکړی ؤ.

وایي چې تر ۵۰۹ ق.م پخوا په روم کې باچهي سیستم ؤ خو په دغه وخت کې یوې ډلې چې (تارکن) نومېدې او د مغرورې په نامه یې شهرت درلود، انقلاب وکړ. بادشاهان یې وشړل او په روم کې یې جمهوریت اعلان کړ.

په ۴۹۳ ق.م کې (تریبون) نومې د دوو لسو لوحو قانون تدوین کړ او د ۳۰۰ ق.م په حدودو کې دغه قانون پوره حاکمیت درلود.

د روم په باب چې د باچهي یا جمهوریت فکر کیږي نو د هغې عصر د پاچهي یا جمهوریت فکر باید ونه شي بلکه جمهوریت چې یې هغه چې نظام ؤ هغه داؤ چې لوی زمېن داران د (سنا) په نامه یو مجلس جوړ کړی او دغه مجلس په دوو کسو لوا چې هغه یې (کنسول) بلل جوړېدي او د ټولنې قدرت د دغه کسانو په لاس کې ؤ.

د روم د ښار خلک په دوو طبقو تقسیم شوي وه چې یوه یې (پاتریسیان) او بله یې (پلبیان) نومېدل. (پاتریسیان) هغه اشراف وو چې د دولت قدرت یې په لاس کې ؤ او (پلبیان) عوام خلک وه.

د روم ټوله تاریخ د دغو دوو طبقو ترمنځ جګړې تشکیلوي چې اشراف قدرت په لاس کې لري خو بل داسې وخت را رسېږي چې عوام یعنې پلبیان قدرت په لاس کې اخلي او پاتریسیان شړي.

پاتریسیان د مطلقیت طرفداران وو خو پلبیانو به د جمهوریت سره علاقه درلوده او دغې علاقې هم دوی ته د خوارۍ څخه نجات نه ورکاوه او هر وخت چې به جمهوریت تاسیس شو دا به هم د با نفوذه خانانو په ګټه ؤ.

په عمومي ډول د روم په ټوله تاریخ کې یو لوی عصبیت دوام درلود چې د خلکو په قتل عام بدرګه کېدی.

د دغه اجتماعي جریان په تحت کې هنر هم منحط حالت استقبالاوه. په ادبیاتو کې خو نور څه نه وه او د ننداري هنر یې داؤ چې د انسان وژلو تماشي به یې کولې. د روم خلکو به د خپل مړیان د حیوانانو سره جنګول او سیل به یې کاوه چې د یو وږي پړانګ سره یو سړی څنګه جنګ کوي. دغه ننداري به په یو ځای کې چې هلته په زرهاوو خلک راټول وه شروع کېدې او هر متنفذ سړي به کوښښ کاوه چې ډېر مړیان دغې جګړې ته راولي.

په روم کې د پاتریسیانو او پلبیانو په اړخ کې د مړیانو یو لوی بې رحمه او ضدي چې د ټولو حقوقو څخه محروم وه او د حیواناتو په شان په ملکیت کې واقع وه او حتی وژل یې هم داسې عمل ؤ لکه یو سړی چې خپل اس خر یا غوایي مړه کړي.

دوی یا نو د ثروت او بدایي له پاره هر ډول جنایات کړل او

مشهور ذیامه خاوند چې د روم په تاریخ کې د یوه سیاستمدار، لیکوال او خطیب خطاب ورته کیږي، هغه سیسرون (۱۰۶-۴۳ ق م) ژداسې ی هغه مهال چې نی څه نه دراودل نو د خوارانو پر طرفداری به یې د صداقت او خدمت ډېرې پر سینه ټکولې خو کله چې د (سیسلی) په حکومت مقرر سو نو په یوه کال کې یې (۴۸۰) د سرو زرو سیکې پیدا کړې بیا نو دا د ولس دوست چالاکه لیکوال د ثروتمندانو مدافع سو او کله چې یې د (کاتلینا) پر ضد تبلیغات کول نو په ډاګه یې وویل «هر څوک چې د ثروتمندانو او بډایانو مخالفت کوي دوی د دولت ارکان ړنګوي او ملي مصلحت ته تاوان رسوي».

په روم کې مشهور شاعر ویرژل (۷۰-۱۹ ق م) یو کلیوالی سړی و له ده څخه د (انییډ) په نامه یوه حماسه پاته ده چې د (ایلیاډ او اوډیسه) په شان جوړه سوې ده.

د مسیحیت د شروع سره د روم اجتماع د فساد په لوی مرداب کې راګیر وه. هنر په هره برخه کې د ممتازې طبقې د یاده و تفنن.

د ډرامې او نمایشنامې سره د رومیانو چندان علاقه نه درلوده. یوازې ډرامه یکښې د رواج وه چې «په خوارانو پورې ملنډې» نومېده.

د رومیانو روحیه ماجراجویانه وه دا یې چې کله د یونان څخه ډراماتیک هنر روم ته نقل سو نو یوه ورځ یوه نمایشنامه پر سټیج تمثیلیده چې یو سړی نادي کړل «هغه دی د باندې جنګ دی»

د ننداري له سالون څخه ټول ننداره کوونکي راووتل او د باندې صرف د دوو کسو ترمنځ جنګ و او دا ننداره دوی ته د ډرامې تر ننداري ډېره په زړه پورې وه.

د روم عظمت صرف په آدم کشۍ کې و خو د مسیحیت په دغه پېړۍ کې د جرمانیکه قومونو تر چپاول لاندې او ټي لوټي سو.

د رومي دربار استبداد او د خرافاتو تحمل نور ولس ته پاته نه و او هر قیام چې به په عمل راتی به ډېره زبردستۍ او قوت به تهدیدی د هغه وخت تصویر په انتقادي ډول د دوهمې میلادي پېړۍ یو رومي منقد لیکوال په خپل یوه اثر کې چې (مسخ سوی طلایي خر) نومیږي ډېر ښه اېستلی دی.

د لیکوال (لیکوس اپو لیوس) نومیدی او په دغه اثر کې چې په یوولس جلده کې یې د یوې افسانې په ډول لیکلی دی د رومي ټولنې د فساد او استبداد او کم عقلۍ څخه یې پرده پورته کړې ده.

افسانه داسې ده چې یو کلیوالی سړی د یو کار له پاره ښار ته راځي او د یوې جادوګرې ښځې په کور کې اړوي دا ښځه دا کلیوال سړی په جادو خر کوي او بیا یې خرڅوي. دا خر د یوه لاس څخه بل لاس ته او له یوه ځایه بل ځای ته ځي او د ډول ډول خلکو بار وړنه پر بار یږي

خر هر څه ویني او د دغه خره له نظره د ټولنې مزیسات او د افرادو عقاید په ماهرانه کومیک ډول څرګند کیږي. څو یوه شپه دا خر (اوزیروش) خدای په خوب ویني او هغه ورته وایي چې سبا په فلانکي معبد کې یو ملا بیان کوي او په لاس کې یې د سرو ګلانو ګېډۍ ده. ته به ورسې او ګېډۍ به ځیني وخوري. خره هم سبا دغه چل وکړ او بیرته انسان سو.

دا ادبي افسانه د روم پر فاسد نظام د ادبي جنبش یوه پیلامه ده چې وروسته د لاتین ادب په ترقي کې رغیز. کوي او د ایتالیا د ملي جنبش اساس ایښود کیږي.

په روم کې چې اوضاع هر څومره ناآرامه کیږي نو د مسیحو لیکوالانو تکلیف هغومره ورسره زیاتیږي دوی په فجیع ډول تهدید کیږي او په ډول ډول آزارونو مبتلا کیږي.

## ادبیات او کلیسایي مذهب

منځنۍ پېړۍ چې د بشري فرهنګ په تاریخ کې د یوې وقفې حکم لري نو په دغه دوره کې نورې اجتماعي موسسې چې د سقوط او سکوت سره مخامخ دي په هغه کې د هنر موسسه زیاتره تر تهدید لاندې او په اصطلاح تیږک خوړلې وه.

«پاته په ۳۱ مخ کې»

د م- ابراهیم عطایي لیکنه:

د طلوع افغان ګڼه

# مرحوم محمد ګل نوري له موږ څخه ګیله من جلا سو

دروان کال د لیندۍ د میاشتې په ۲۰ زموږ د هیواد یو معروف لیکوال محقق، متتبع فلکلوریست او په عین زمان کې یو اجتماعي شاعر محمد ګل نوري د ابد لپاره زموږ څخه بیل سو.

داسړی چې د هیواد په فرهنګي کار کې یې پوره دوپنځوس کاله پر له پسې خدمت

کړی ؤ یو شمیر داسې اثار څخنې پاته سوه چې د هیواد هر یو د افغاني ثقافت او د ادب اوژبې په باب د

یوې خزانې حکم لري او همدغه آثار دي چې د نړۍ په علمي مسوا او اکاډمیو کې زموږ

ژبه او ولسي ادب ته حیثیت ورکړ، او د نړۍ په څینو لویو او معتبرو ژبو ترجمه سوي دي.

دادی پښه نه وی چې نوري زموږ څه ګیله من ولاړ، ده په ژوند کې د خپل ډیرو نا ارمیو او

هر دم شهید یو سره فرهنګي خدمت ته شا نکړه او په ډیره مردانګۍ ئې د مصائبو تحمل

وکړ.

هغه مهال چې په هیواد کې د پښتو ادب مشعل وانګید نو نوري

د کندهار په ادبي انجمن کې شامل سو وروسته چې د انجمن د کابل د ادبي انجمن سره یوځای سو.

او پښتو ټولنه ئې تشکیل کړه نو بیا په کابل کې په خدمت بوخت شو.

نوري د صلاح الدین

سلجوقي، رشید لطیفي، عبد الرحمن پژواک عبدالحی حبیبي، بینوا،

الفت او د نورو ملګرو لیکوالانو له ملګرو څخه ؤ خو څرنګه

چې قانع سړی ؤ او ډیره

عزلت پسنده طبع ئې درلوده نو ځکه ډیری

کیدونکې ډول ئې دژبې

او ادب په تحقیق کې ځان سر ګرمه ساتی، داد شریطو څخه ؤ چې د غسې

یو د عزت نفس خاوند باید محرومیت وګالي

د نوري سره ډیری بې غوري

هم وسوي.

دی د مدیر عمومي تر رتبې ورسید خو کله چې یې تقاعد وکړ نو

د تقاعد په حقوقو یې په کلونو سرګردانه سو خو د دومره کالو خدمت

په مقابل کې له ډیرو کمو وروسته

مستحق وګڼل سو.

داز ما څه په یاد دي چې د دغه مؤلف او لیکوال د تقاعد شروع

وه چې هغه د خپلو خوراک اړي ته محتاج سو او په داسې حال کې چې په



مرحوم «نوري»

سپینه ږیره او د پیژندګلۍ پیدا کړی په بي د خپل د مزدور په حیث د خپلو کاسې چلولې او دیې سواده

بډایانو قصرونه به ئې جوړول خو د لینګراد، مسکو او مونشن په اکاډمیو کې دی یو افغاني پیژندلی

ځپرېده او دده نوم د دغو اکاډمیو د ملتونو ژبو او ادبیاتو د پښو محققینو په جمله کې قید سوی ؤ.

زه د مسلك په نوم لوړه کوم چې یوه شپه مې د مسکو د راډیو څخه د ده په باب د پښتو فولکلوریك ادب د تحقیق د لمانځنې په باره کې د ده په درناوی یوه مقاله واوریده خو کله چې د دفتر څخه راووتم نو نوري مې په هرات دروازه کې ولیدې چې یوه تاغار مستو ته ناست ؤ هغه یې خر ځولې او یو شمیر ته ښکیدی.

نوري یو با ایمانه او منور انسان ؤ هغه ورځ مې هم په یاد ده چې د سرطان په ۲۶ په هیواد کې جمهوریت اعلان سو او زه دفتر ته راغلم دی راغې مبارکي ئې راته وویله، دده د ملي هنداري دریم ټوك چاپیدی او هیله یې وکړه چې خپل دغه اثر د هیواد د جمهوریت مؤسس او ملي قهرمان ښاغلي محمد داؤد او د جمهوریت د قیام قهرمانانو ته اهدا کړي.

موږ د ده د غه غوښتني سره سم د دغه کتاب پر پشتۍ د ده غوښتنه چاپ کړې ده.

ماوویل چې نوري زموږ څخه ګیله من ولاړ، دا یو حقیقت دی، دی یو مظلوم انسان او خواریکښ لیکوال ؤ.

دده سره چې بری تا خوالي وشوې دده حقوق زموږ د تیر تور او بې انصافه نظام په قلا یې فرهنګي موسسو کې کاملاً تلف شوي وه.

دا سند موجود دی چې د ده د پښتو قاموس څو ټوکه وخو کاله یې بې حسابه زحمتونه د هغه قاموس په ټولو نه کې صرف کړي وه. د دغه قاموس لومړی ټوك هم د کندهار په مطبعه کې چاپ شو خو باقي چې یې د پښتو ټولنې له خوا په کابل کې چاپ شو نو ده. نوم هم د هغه څخه وغورځول شو.

د نوري ملي هنداره چې په دوه ټوکه کې د پښتو ټولنې له خوا په کابل کې چاپ شوه وروسته د بې انصافه تاجرانو له خوا بیله دی چې دده حق الامتیاز په رسمیت و پیژني په پېښور او لاهور کې په وار و وار چاپ شوه او د وروستي چاپ ټوکونه یې داسي چاپ شوي چې د ده نوم یې هم وربدل کړی او د محمد ګل پر ځای یې محمد کامل ور اچولی دی

خو د هغه شخصیت کش نظام په بې انصافي کې چې د فرهنګي موسسو اختیار و بې صلاحیته خلکو ته سپارل شوي ؤ حتی پښتو ټولنې د ده هم ونه کړل چې دده د نامه د حق بازخواست او صرف په کابل مجله کې دا ولیکي چې محمد ګل نوري ژوندی دی او نوم ئې هم محمد کامل نه دی.

یو وخت د مطبوعاتو یو مسئول لوی سړی ته چې کندهار ته راغلی ؤ ماوویل چې محمد ګل نوري ډیر اواره دی او اجازه راکړی چې په مطبوعاتو کې داجیر په حیث کار ورکړي وهغه راته وویل چې هغه لیونی شوی دی ده وویل په بازار کې مې ولیدلو ږیره یې پرې ایښې، یو کمیس او یو پرتوګ یې اغوستی ؤ لمنې یې ښې دوان ؤ.

ماورته وویل چې هغه اوس د څو مزدوري کوي.

اوس نو تاسي انصاف وکړی دا هغه سړی ؤ چې د خارجي دنیا فرهنګي موسسو او تحقیقي اکاډمیو دی د یو ځانګړي افغان فولکلوریست په حیث پیژني.

نوري یو خواریکښ انسان ؤ هغه تر دغه دوي میاشتې پوري د مخه چې مړ کیدی او عمر یې ۷۳ کالو ته رسیدی د کندهار په مطبوعاتو کې د وساده اخباري مصحح په حیث کار کاوه.

لکه دې چې د افغاني فولکلور یو علاقه مند محقق ؤ د مرګ صحنه یې هم دغسې وه، ده جنازه مو په یوه صحرا کې د ده په پرتلې هدیره کې خاورو ته وسپارله.

پر هدیره یې کلیوال خلک راټول وه. تر ښخیدو وروسته یې د کفن رپښکې پر قبر په دوو لښتو پورې وتړل شوه او بیا د کلیوالو د رسم او دود مطابق یې په خیرات کې کشمش او نخود خوارانو ته وویشل شوه.

دا لوی او د وطن پر ملي فرهنګ مین لیوال لیکوال نور زموږ په منځ کې نشته خو زه چې ژوندی یم دده خواري او دده سره یې دردي به مې له خاطره و نه وځي.

زموږ هیله او آرزو دا ده چې حاضر ځوان جمهوري نظام کې به

«پاته په ۳۲ مخ کې»

ژباړونکی رشید «آرین»

# حقیقت او د هغه مونده

په فلسفه کې د حقیقت درې عمده تیورۍ بیان شوې دي:

الف: پان لوژیسم - چې وایي ټول حقایق له لومړنیو ضروري او کلي احکامو څخه د استنباط شوي. ارسطو، دکارت، لایب نیتس او مالبرانش په یو څه توپیر سره د دې نظریې طرفداران دي. څرګنده ده چې له لومړنیو احکامو څخه د ټولو حقایقو استخراج خطا کار دی.

ب- آمپیریسم: چې وایي منطقي حکمونه هم نقش لري او یوازې تجربه ده چې حقیقت څخه د استنباط شوي. دا هم غلطه خبره ده ځکه د پوهنې دوه ډوله عمل او مقدمې په خپل دواړو کې محتوی لري لکه انتزاعات او تعمیم او دوی ته ارزښت ورکوي.

ج- لوژیك امپیریسم: (او منطقي نیو پوزیټیویستان) حقیقت پر دوه ډوله ویشي. یو مادي حقیقت چې له تجربې څخه راځي او بل صوري حقیقت چې د «ویټګن شتاین» په وینا د مکرر خبرو تکرار LAUTOLOGY دی. صوري حقیقت لکه د ریاضي او هندسي حقایق له ذهني صوري احکامو څخه استخراج شوي او په واقع کې د اجزاؤ د داخلي تطابق او هماهنګۍ پر اساس حقیقت ګڼل کیږي. (COHERENCE)

ومادي او صوري ته د حقیقت ویش هم غلط دی او دا خبره صحیح نه ده چې صوري حقایق په واقعیت کې کوم بنسټ نلري او یوازې د اجزاؤ د داخلي هماهنګۍ او تطابق نتیجه ده.

حقیقت په انساني فکر کې د واقعیت صحیح او مطابق انعکاس دی چې له پراتیک څخه یې منشا اخستې ده او پراتیک یې له واقعیت سره تطابق یا نابرابري یعنې صحت او سقم څرګندوي هیڅ داسې حقیقت نشته چې یوازې دي د دماغ له اثیر څخه راوځي.

## حقیقت څه شی دی؟

حقیقت د انساني فکر یو تر بیوت او دروغو په مقابل کې ولاړ دی. دروغ د ذهن یو جوړه شوې خبره ده نه تر ذهن د باندې د عینیت یو انعکاس. سفسطه داسې مقصد و دباره د حقیقت او دروغو سره ګډول او لړل دي چې د واقعیت او حقیقت سره منافي وي. د پوښتي د حقیقت د ښکاره کولو دپاره د منطقي استدلال صحت او د داخلي اجزاؤ تطابق لازمي شرط دی خو کافي شرط نه دی ځکه کرم شی چې او س واقعیت وي، دوخت د حوادثو د ډینامیزم تر

اغیزې لاندې هر وخت واقعیت نلري امکان لري چې استدلال دې پرځای او سم وي واقعیت تکیه ونلري. استدلال شاید بې معلوم اځ ونه او کشف شوي فاکتونه په پرکې ونلري خو نامعلوم فاکتونه چې هغه استدلال دې غلطوي، په پرکې ونلري.

سفسطه، مغالطه او احتجاج

چې ظاهري بڼه یې منطقي ده، پراخ ډګر لري. لنین وایي: «دیالکتیکه هغه ترمش دی چې په ابجکتیو (عینې) توګه په کار ولویږي خو سفسطه هغه ترمش دی چې په سبجکتیو (ذهني) ډول په کار اچول کیږي». یوازې دیالکتیکي تفکر او د تجربې او عمل ملاك (محك) د حقیقت ته د موندلو لار چوړوونه کولای شي.

سفسطه زیات ډولونه لري:

التقاط (اکلکتیسم): یعنې د داسې مختلفو احکامو سره منلول چې یو د بل سره اړ کانیك او ذاتي ارتباط نلري.

ابستر کشنیزم: یعنې په داسې انتزاعي مفاهیمو سره مهر باڼۍ کول چې په واقعیت کې مشخص مضمون نلري.

د ګماتیزم: یعنې د داسې

«پاته په ۲٤ مخ کې»



تهیه کوونکې: میرمن ملاله

ژباړه

# خستګي ښځه او سړی سره دلسرده کوي

هغه اطاق چې فضا ئې د ښځې او خاوند د عشق او محبت ډکه کړې وي د یو بې الایشه اطاق صفت لري ځکه د دې اطاق په هکله د یو الوتونکي دی چې دوی یو او بل ته نږدې پېژني او یو د بل میلان درک کولای شي، او د زړه د احساساتو او مکنوناتو سره آشنائي پیدا کوي.

که یوه ښځه او خاوند دا احساس وکړي چې دا اطاق د دوی د استراحت او خوښۍ ځای دی نو دوی کې به ئې هم د غه رنګه احساس ولري.

هیڅکله مې نه هېرېږي کله چې وړوکی وم، هغه وخت چې به د ښوونځي څخه کورته راغلم د کور د غولي څخه به مې مور نا ارامه وه، ځکه چې هر وړوکی ... ډول عمل کوي په هغه به مې د مور او پلار اطاق ته

وځغستل وبه مې لیدل چې ګرانه او مهربانه مورمې د کړکۍ څنګ ته ناسته او پوښۍ جوړوي.

دې کولای شوای چې دغه کار په بل اطاق، آشپزخانه او یا بل ځای کې سرته ورسوي، ولې دا احساس مې کاوه

چې دا د دې لپاره په دې ځای کې ناسته ده ګنډل یا مطالعه کوي چې دا اطاق زما د پلار سره د عشق او محبت مرکز دی.

موږ کولای شو چې هر اطاق د ښادۍ او نشاط ځای وګرځوو که یوه ښځه ښه پوه شي او پوه یږي چې کوم شی د دې د نیکمرغۍ او خوشحالۍ سبب کیږي او د دې د خوښۍ او نشاط کیلي څپله د دې په لاس کې ده، ځکه نو به هر اطاق کې چې د خاوند سره ژوند وکړي د خوښۍ او خوشحالۍ

څخه به ډک وي، ځکه د یوې ښځې خوښي او خوشحالي تر هرچا څپل خاوند ښه برابرولای کولای شي.

د دې لپاره چې یوه ښځه وکولای شي د خپل خاوند سره په خوښۍ ژوند وکړي او خاوند ئې د دې د سعادت

او خوښۍ په هکله څه وکړي دا باید د خپل میړه په ګډ ژوند کې چالاکه متبسمه په هر حسه وي او دغه رنګه د عشق و محبت څخه ډکه ژبه ولري.

ښځه باید عشق او محبت د خاوند سره، د ژوند سره، د کورني او اولادونو سره ولري.

یو د هغو شیانو څخه چې د خوښۍ او مسرت څخه ډکه فضا منځته راوړي او د ژوند فضا یې توره او ربع مکدره او تاریکه کوي هغه خستګي او ستړیا ده، د شکت ځای

دی چې نننی ژوند خصوصاً هغه ژوند چې په هغه کې د سعادت د پاره بریښي قدرت او انرژي ته اړه دی.

کله چې یوه ښځه ستړې او خسته وي د هغې احساسات او فعالیت د صفر درجې ته راټیټیږي او په نتیجه کې ئې په

وجود کې ئې شکست، ناتواني او تاریکي پیدا او په ژوند کې ئې عشق ضعیفه کیږي.

هغه ښځې چې نوې ئې واده کړی وي باید تر ټولو ښځو زیاته توجه وکړي او ځان تراندازې زیات

ستړی ستومانه نکړي، ځکه یو د هغو عواملو څخه چې ښځه د میړه سره د ګډ ژوند کولو له امله بدبینه کوي او د دوی ژوند ورخرابوي ستړیا او ستوماني ده.

هغه ښځې چې نوی واده کوي د ژوند په لومړیو

میاشتو او ورځو کې د ګډ ژوند سره خسته او ستومانه کیږي دا خستګي او ستوماني د میړه په نزدیکت سره زیاتوب کوي او د کورني د ضرورت وړ شیانو د تهیه کولو لپاره نه کیږي.

یوه ځوانه ښځه چې نوې واده شوې وه د دوو اونیو په هغه تازه ورځو کې ناروغه شوه نو یوه ورځ زه ورته ورغلم کله چې بستري ته ئې ورو ورسیدم ویل دي چې څه وواییم

«پاتې په مقابل مخ کې»

د ملالۍ لیکنه

# ولې ځینې کسان خپله

## نیکمرغي د نورو په بد مرغۍ کې لټوي؟

د دې خبرې په اوریدو به هر یو دا فکر وکړي چې داسې څوک به نه وي چې د بل په بد مرغۍ به خوشبین وي. مګر داسې نه ده، ډیر څله داسې لیدل کیږي چې ځینې تعلیمیافته پیغلې سر بیره پر

دا چې لوڅ خبرو او همدغه رنګه پر له پسې مبارزو څخه چې د ښځو د حقوقو په هکله روان دي، ډیر

داسې سړي سره واده کوي چې څخه یوه بله ښځه لري. دا کار بې تعلیمې نجونې وکړي هغوې

خو د ګناه ډیر لږ نو پر اوږو اخلي. مګر تعلیمیافته پیغلې خو خپل سرنوشت ټاکلای شي او له

تعلیمه محرومې نجونې دوی ته د امید ستوري ګڼلی شي. چې ګونډې دا رسیدلی او پاسو اده پیغلې به

د دا ډینو د ظلم څخه ونیسي مګر وینو چې دوی پخپله د دې ظلم زمینه هغوی ته برابروي.

ګرانو پیغلو! د بې سوادو او پاته میرمنو د امید ستوري ګڼي ستاسو وخوا ته دي نو ددوی د امید مه

مړاوی کوئ. او هڅه وکړئ تر څو د خپل همنوع د جنه ژوند د برابرولو لپاره هڅه وکړئ او

د ژوړ ورد ظلم لاس د هغوی د سر څخه لنډ کړئ. د بل په بد مرغۍ کې خپله نیکمرغي لټول د نا رده او بې عاطفې انسان کار دی.

دا کار بیا هم د ګرانو میندو پر اوږو اچوم چې دوی باید خپلو لوڼو ته په دې هکله

نیکې توصیې وکړي. او دوی د آینده ژوندون سمې لارې ته رهنمایي وکړي.

تر څو په دې توګه نه د بل ژوند د خطر سره مخامخ سي او نه د اولاد د بدبختیو سره لاس و

ګریوان سي او په دې ځای کې تر هر څه نصیحت کوونکې او مادې موردې چې کولای شي

په خپلو منطقي خبرو د خپل لور پام د هغې اشتباه ته وروي او هغه په دې پوه کړي چې د خپل

همجنس د ژوند خرابول د انسانیت او عاطفې څخه لرې کار دی.

د ۱۴ مخ پاته

په ژړا ئې شروع وکړه او څو دقیقې ئې داسې وژړل چې بستره له په ډیر ژړا په اوښکو لنده شوه او پسله ژړا څرګنده چې ستا نیکه بیا هم عقده درلوده نو ولې و بل ماده عشق او علاقې په دنیا کې

واده وکړ او د ډیرو آرزوګانو او امیدونو سره د میړه کورته راغلم اما په ډیر څو شپو کې چې د میړه سره مې

تیرې کړې زما د آرزوګانو یوه هم تر سره نه شوه ډېر کتره؟ آیا دا نقص او قصور زما دی؟ لطفاً را ته ووایه چې

تر دې وروسته په ژوند کې څه ډول روش په کار واچوم؟ په جواب کې مې ورته وویل زه ستاسو په تکلیف پوهیږم؟

ستاسو په میل او رغبت واده وکړ. مګر په مجرد د دې چې ستاسو د واده مراسم پای ته ورسیدل د خپلې کړنې څخه

پښیمانه او مجبوره شوې چې د میړه څخه ګریزانه سي او د هغه څخه لرې والی اختیار کړې.

قوي احتمال لري چې ستاسو خاوند هم ستاسو د نژدیکت سره دومره میل نه لري آیا دوا ده په دمڅه ورڅر کې هر

ډیرې خبرې نه دي کړې؟

زه تر هغه وخته چې د پالو درایبو لو لپاره بوي او بلې خوا ته نه پاست

ګرځېدلې؟ او آیا ارس د څښتنګې احساس نه کوی؟ او ډېر میل د خوب لپاره نلری؟ که دغه ډول وی نو ډېر تشویش مه کوه. امکان لری په ۴۸ ساعتو نو کې ستاسو د لاسه وتلی ارزې چې ستاسو د دل سردی سبب

شوې دی بیرته حاصل او د ژوند سره بیرته علاقه او مینه پیدا کړی. هغه نجلی د میاشتو تر تیریدو وروسته بیا ماته راغله او وی ویل چې ما او خاوند مسئله تر سنجش او غور لاندې ونیول آخر پوه شو چې فقط ستړیا او ستوماني موږ یو له بل څخه دلسرده کړي وو.



د گلرخې پرباڼه خوچې اوښکې را سي
د مین پرزړه تهاکسې هـويدا سي
اندك رنجه وي خلقت د مهوشانو
ځکه پرخې ته اجل دلمر نګاه سي (ط)

## ساغر

چې ابریز لکه حباب به مې ساغر کړم
مهیا کباب دخپل سوخته جګر کړم
ملکه ومال وی تل باخته د آزاده وو
دا بېزې لکه ګوی ځکه بې خپل سر کړم
دفانوس به پرده بند لکه شمله سی
زکه برق دیاد په اوری نامه بر کړم
به صورت می شی خولی په حیا ماتی
که ونان ته د آفتاب خو نظر کړم
دل جمعی می غنچې سان وی له ګل ښیځه
پوشیده چې لکه عیب خپل هنر کړم
کله لوست شما می خط سی په کوداڼو
که آسمان، ځکه د حرف زیروزبر کړم
نور به څه په بل دښمن و یاسم توانه
په خپل تیغ به ځان خو دریز لکه سحر کړم
«شیدا» نه موم ګرمی له هم صحبته
که خپل ځان په سرو امیو کښې سمندر کړم
«کاظم خان شیدا»

## شانه او گیسو

بیا دې دواړې سترګې تورې په جادو کړې
مسخرې ځکه په سترګو د آهو کړې
سیاه بختې چې داولې زما وزړه ته
دا به داچې شانه ګڼه په ګیسو کړې

د جفا په تیغ دې قتل عاشقان کړه
چې ای قصده د رقیب ځای پر پهلو کړې
عالم ولې ستا له زلفو ګیله کاندي
قتلول د عاشقانو په ابرو کړې

د هجران تیغ مې سینه پاره پاره کړه
کړ په وصل مې زخمونه دارفو کړې
چې تر سترګو مې رودونه ځي په هیڅ
تو «حنان» به په دې اوښکو کولاهو کړې
(میرزا حنان)

# ادب او هـــنر

## لنډۍ

د پــــټو زړونـــو خـــبر داره
پرورد ګاره لیو لی ور پسې سومه
دا خپل ښا یست داپو دی اور سو
خیالی زلمی دا پسې مری خو ګناه شومه
زړه مر غلره ده چې مات سی
بیا د لیاس به خدا له اخلی پیوندونه
دزړه یا قوت می همیران مات کړ
ځکه له سترګو ملغلری تو یومه
بیا بـــــه دی تورنـــه کـــړم کـــمیسه
ځما د سپینی سینی رنګ دی وړ دونه
د دنیا دری ور ځې ژونـــد ون دی
خاوری ایری به پرځان ځله بادومه
پـه کښته مه ځـه پـه سـتنه شـه
په کښته تللر قافلی لـوټ شـوی دیځه
ودك شـــی زمـا بـــــده نصــــیبه
چې دی په جفتو څورڅوم دا ړه ی طاقوانه
«١٦مخ»

# بې وفايي

یار دا څخه ولاړ دی پسې ئې مړ ژوندی پایم
نو زما په مینه چې لا بایم، بې وفا یم
حق د دوستۍ دا ؤ چې په دواړو سترګو ړوند شم
دا څه شوخ چشمي ده چې لا څټ ګورم بینا یم

نه شپه و ورځ ژاړم نه له خوبه سوم بې خوبه
آب بې آبو سترګو زما ورك كړې كه حق وايم
نه ئې په اوښ د جدايي ولاړم بې هوښه
نه په خوږو وکونې سوم لکه یم هسې لا بیا یم

نه مې ځان کوهي ته واچاوه او نه اور ته
نه پسې له غمه ليونى سر په صحرا یم
نه مې دم قدم په يوه غم كې مخ په لاړ دی
نه آسماني کاڼي پر ما پریووت څه بلا یم
نه فرهاد، وامق غوندی له ځانه شوم بېګانه
نه ور پسې ړوند لکه يعقوب په تمنا یم
مخ زما تر باره پورې تور کوي دی اسكور دی
څو به اوښ تر پولي لاړ دی بیا له خلکو پیا یم

لید په سترګو نه سي بې لوګي د سري اور دی
مازده زما زړه دده چې پري غر لګه چلیا یم
هیڅوك خبردار زما له سوز او ساز نه شو
هسې لکه شمع په خندا کړ په ژړا یم

بو يه چې طبیب زما د رنځ راشي له هنده
خدای زده چې تر كومه «حمید» په واویلا یم

عبدالحمید

# ادبي مرغلرې

چې د میني هنګامه په لي زیږوشي
ورته ار څکي ئه . انه په څخیدوشي
نه دا ری نه شي تو به د مین ماته
سری ويني د بدن په توديدو شي
د ځواني انقلاب نه قرباني شي
چې د حسن شاري به خوځیدو شي
د رحمت فرشتي راوړي ورته زیری
چې د میني لیوني په ژړیدو شي

«دردمند»

# انار او سیب

چې پري مزی کړی اغیار دا د مزدورو یني دي
چې دالمان شو پري ډو پدار دا د مزدورو یني دي
دا د آسمان لمنې سرې چې وه سحر مازدیګر
نه دی شفق که په هوښیار دا د مزدورو یني دي

دا میخانه کښي چې خمار د سرو شرابو وي
تر ینه چا په . وي سر شار دا د مزدورو یني دي
د وطن ولې زرغونیږي د مزدور په وینو
رنګ چې تري اخلي سیب، انار دا د مزدورو یني دي

دا چې خوځه کښي وي سل قسمه نعمتونه هیش
عیش پري کوي سرمایه دار دا د مزدورو یني دي
دا هرو جام دو ته په لاس کښ دی لیونی غلیم
چې نوش يې کړي په تلوار دا د مزدورو یني دي
عبدالمالك خوله پې پرانیزه غلط پري نشي
پیاله چې ډکه له غدار دا د مزدورو یني دي

دزیری څخه

# دزلفو تناب

ساقي! کومه پیاله ئې مه شراب لري که نه؟
دواد زخمي زړه خانه خراب لري که نه؟
پرون خو يې له خوله د زاهد هم شونډې ژبېښلي
ساقي! کوزه کې پیا څه مې ناب لري که نه؟

اغزو دا ته له ګرتو نه رواني کړ لي وینې
په باغو کښي دی پټ ګل د ګلاب لري که نه؟
پیده زړونه راویښ کړل د اجمل خوږ و غزاو
مطرب په او په څنګه کښي دي رباب لري که نه؟

د ځان په تماشه کې سهار) کښه کړلو بدلې
دزلف داوږده دي ګرم تناب لري که نه؟

# منتخبه خاوریځه

که ګر بوان مهرو به پاك پکاده فکر کړي
دزاهد به د تقوی پوستین فکر کړي
دزړه سر به بې تنها کې سي له شوقه
که دا ستا د سینې څوکو ته نظر کړي

(ك-ط)

# رنسانس څه ته ویل کیږي؟

رنسانس چې دنوی ژوند د احیاء معنی ده. ورته د کلاس سره هغی دوری ته وائی چې دمنځنیو پیړیو اروپا په نوی اروپا تبدیله سوه یا په بل عبارت رنسانس بایدونشی اروپا دعلومو د انکشاف او ترقی له نظره یوه نوی مرحله قبوله کړی وه.

د احیاء دغه مفکوره اصلاً د ایټالیا څخه دپنځلسمی پیړی له وروسته یو وختو څخه شروع سوی وه او په چټکتیا سره ټولی اروپا ته سرایت وکړی چې دغه اوږدوب په تیره بیا دصنایعو او ادبیاتو په برخه کښی دمقابلو وړ دی چې د ایټالیا څخه ئې د اروپا نورو هیوادو ته لکه فرانسه، انګلستان، هسپانیه، او جرمنی سرایت وکړ او دغه نکو په افکارو کښی یې اوی انقلاب او بدلون راوستی د دغه طرز تفکر دمنبع ته رانلو سره سم په اروپا کښی دصنعتګرانو، لیکوالو او هنر مندانو لکه نقاشانو، مجسمه جوړوونکو او نورو پرمخ نوی دروزه خلاصه سوه چې د لوړی عمل لپاره د چاپ صنعت په وجود راغی. ګټه د کتابونو خپاره سوه، لیکوال او هنرمندان په نوو څیرو او لوړو افکارو سره څرګند سول او تازه آثار ئی له ځانه یادګار پرېښودل. خلک د هنر، ادبیاتو او صنعت خواته متوجه سول. ګڼ شمیر کتابونه چاپ ته وسپارل سوه او همدغه راز او یو کتابخانی تاسیس سوې. معارف او پوهی انکشاف وکړی، د لیکوالو په افکارو کښی لوی تحول راغی او نوی سبکونه په لیکوالی کښی عملی سوه.

دغی دوری د نامتو لیکوالو څخه دیتراکا فرانسیسکو، سیسرو، ماکیاولی، میکل آنژ، رافائیل، کلمان مارو، رونسارد، رابیلی، ګالولین، مونتینی؛ ژانکوژون مجسمه جوړوونکی او پیر یسکو فرانسوی معمار په فرانسه کښی او آدامس او هم باستی په آلمان کښی دیادوني وړ دی او ددوی څخه هریو په خپل وار دلوړی په دوری د پیشقدمانو په حیث په دغه دوره کښی دقدردوني نامتو له سرته رسولی دی.

د زده کوونکو صفحه

د ټکي زده کوونکو د پیژندنی په لړ کی:

# پیغله کریمه «شکوری»

محترمو محوانانو ځوانګه چی موږ د زده کوونکو د صفحی څخه یوستون د ټکی او نهالانو د پیژندنی لپاره وضع کړی دی نو دادی د همدغی معرفی په لړ کی پیغله کریمه «شکوري» تاسو ته دروپیژنو.

پیغله کریمه شکوري دملالی د اوومی ټولګی ځوونځی د شپږمی ټولګی زده کوونکی ده. نوموړی په خپلی ټولګی کښی د ټولګیوالو ترمنځ په ډېر اعلی ډول ټولګی لی اوویشتی وړکړی دی د لوړی ټولګی څخه ترهمدی وخته په لوړه درجه بریالی سوی ده.

دا ځواندی چی خپل تعلیم ته ترعالی تحصیلا تو ادامه ورکړی او په بریالیتوب ئی سرته ورسوی. کریمه «شکوري» سربېره پر زیاتی پوهی د ډېر اخلاقو لکه د مشرانو احترام کول د ځوانکی مراعات او د ښوونځی د قرانینو څخه پوره اطاعت کول او داسی نور چی د یوه خوش خوی انسان ګټیڼه وي ښیښته ده.

موږ د خپلی ټولګی د هرمور او پلار لپاره په خپله وظیفه او ټولنی ته دسالمو افرادو په وړاندی



پیغله «شکوری»

کورو په تیره بیا په نوی رژیم کښی چی دغه ډول ځوکړو لپاره زیاتی خلاوی موجودی دي بریالیتوب غواړو څو لههره حیثه منور او حلیم ځو انان وروزلای سی.

دمریمی صالح ژباړه

# پاراګوای

د پاراګوای هیواد د جنوبي امریکا په مرکزي برخو کښې موقعیت لري او درلودونکی د ۱۵۷۰٤۷ مربع میله پراخوالی دی. نفوس ئې دیو ملیون او شپیته زره تنو ته رسیږي

مرکزیې د اسونسن ښار دی چې ۳۵۰ زره نفوس لري.

مشهور ښارونه ئې د کانسپسیون ښار دی چې ۲۹ زره تنه و یلیاریکه چې ۲۲ زره تنه و دوانکارناسیون ښار دی چې ۲۰ زره تنه پکښې اوسیږي.

د پاراګوای د جمهوریت رسمي ژبه هسپانوي ده مګر خلک ئې په ګوارانی ژبه خبرې کوي او علو رخوالی پهدې ډول دی.

د شمال له خوا په بولیویا او برازیل، د لویدیځ له خوا په برازیل او ارجنټاین او د جنوب له لوري په ارجنټاین او د ختیځ له خوا په ارجنټاین او بولیویا پوري محدود دی

د پاراګوای هیواد یو زراعتي هیواد دی او ډیر ګڼ ځنګلونه ئې په هره خوا کښې لیده کیږي د اوبو له رویه خورا ښه منطقه بلل کیږي څه اوبه چې بیړۍ

پکښې چلیږي د مساحت ئې و یوزرو نهه سوه میلو ته رسیږي چې د بوانس آئرس سره د بیړۍ چلولو منظمه رابطه لري.

د طبیعي منابعو له رویه ډیر آباد هیواد دی او د اوسپنې، منګنیز و مسو معدنونه لري مګر تر اوسه استخراج شوي نه دي. د پاراګوای د هیواد تقریباً ۷۵

فیصده خلک په زراعت اخته او زراعتي تولیدات ئې غنم جوار، اوربشې، پنبه، لوبیا، تمباکو او د مختلفو میوو ډولونه تشکیلوي.

مالداري ئې هم پرځایه اندازه پرمختګ کړی دی او لوی تولیدي صادرات ئې د کرهنې او مالدارۍ څخه د غوا غوښې او د غذائي موادو، پنبه، سپښې، ارګی دخبوا ناتو

پوستکي او تمباکو دي. د پاراګوای جمهوریت تر ۱۸۱۱ پوري د هسپانیې د مستعمرو څخه و او په ۱۸۱۱ کال ئې خپله آزادي واخستله په ۱۸۷۰ کال ئې اساسي قانون تصویب کړ دا قانون په ۱۹٤۰ کال تعدیل سو او د نوي قانون په اساس د استهلاکي موادو انحصار د حکومت او قیمتونه تثبیت سوه.

بیرغ ئې د سرو سپینو او آبي افقي نوارو څخه جوړ پر سپینه نوار باندې یو ځنګلی نښان او پلی خو ته ئې یو نمری د یوی جملی سره معلومیږي د پیسو واحد ئې ګوارانی چې د ۳۰۵ پولو سره برابر دی.

## ښوونکی او زده کوونکی

د حساب معلم د یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړه. چې که یوه ښځه په یوه ورځ کې یو کمیس جوړ کړي نو دوې ښځې به په دوو ورځو کې څو دانې جوړ کړي؟

زده کوونکی: نیم کمیس.

ښوونکی: دا سې معلومیږي چې د حساب په قاعده هیڅ نه پوهیږې.

زده کوونکی: ښه پوهیږم ځکه که دوې ښځې سره یو ځای شي نو ډیرې خبرې کوي چې کار ته هیڅ فرصت نه ورپیدا کولای او هغه نیم کمیس لاهم پرهغو ډیر دی.

## پنځه لویې ګناوې

۱ـ هغه ګناه چې د هیڅ ډول عفوې وړ نه ده د هغه چا ګناه ده چې ظاهراً ځان متقي او په معرفي کوي خو په پټه جنایي جرمونه ځنې صادریږي.

۲ـ د هغه چا ګناه او جرم ده چې ګړنې ئې او تر به نه پر کړي او بیا په او پند یو نه پښیمانه کیږي.

۳ـ هغه دروغ دي چې د رښتیا په جامه کښې پیچل شوي او وړاندې کیږي.

٤ـ د هغه سړي ګناه ده چې د زیاتې مودې د پاره د یو چا په نسبت کینه او غښه زده کړي او ناتي او د دوستۍ په لباس کې ورو ړاندې شي او په دغه ترځ کې سخت انتقام ځنې واخلي.

له تیوریکو منابعو څخه

د نثار احمد «رزمند» ژباړه

# د اقتصاد علم

د اقتصادي فعاليتو بنسټ توليدي چارې دي. تر څو چې په مال تولید نه شي مبادله نه شي کیدلای ځکه اقتصادي پديدو څېړنه بايد د توليد څخه را شروع شي.

انسان د هغو شیانو تولید ته چې ژوند ته ئې ضروري او لازمي دي یوازې نه دی او حتی په ډېرو لومړنیو ټولنو کې یوازې نه ؤ

او د يوې ډلې سره د توليد په کار کې ګډون کوي ځکه د اقتصاد په علم کې د اجتماعي

روابطو بنسټ تر ټولو د مخه توليدي مناسبات دي. علمي اقتصاد د بورژوازي اقتصاد برعکس

د افرادو اقتصادي فعالیت په ځانګړي توګه نه مطالعه کوي بلکه د اجتماعي روابطو سره ئې

چې هماغه اقتصادي روابط دي څېړي.

د ټولنې څخه ځانګړی او جلا انسان، حقيقي انسان نه دی. اصولاً انسان تر هر څه د مخه

اجتماعي موجود دی داسې موجود چې سر تر پايه په اجتماع کې جوړ شوی دی او د ده د فعالیتو ټول شکلونه په تیره بیا اقتصادي فعاليتونه اجتماعي خصلت لري. ځکه د اقتصاد د علم بنسټ یوازې تولید نه دی، بلکه توليدي روابط هم چې انسانان

یو په بل پورې تړي د اقتصادي پایو په قل کې راځي ځکه وايي چې «د اقتصاد علم هیڅکله و تولید ته متوجه نه دی بلکه

په توليد کې د افرادو اجتماعي روابط او د توليد اجتماعي جوړښت ته توجه لري »

په تاریخ کې د تولید روابط خپل شکل بدلوي.

بايد و ګورو چې د دغه تغير عامل څه شي دی؟

او پر دغو تغیراتو باندې کوم قوانین حکومت کوي؟ دغه څېړنه د اقتصاد د علم وظیفه ده چې بايد د توليد روابط په خپل

تکامل کې مطالعه کړي او د دغه پراختیا او تکامل دلایل بیان کړي په دې توګه د اقتصاد علم ځان ته تاریخي

بڼه مومي. نو اقتصاد هغه علم بولي چې د تولید او ویش یا توزیع اجتماعي مناسبات د هغو په تکامل کې مطالعه کوي.

## د توليد طرز:

هغه طريقه چې انسان ئې د خپلو اړتیاوو د توليد دپاره لکه خوراک پوشاک، کور، د تولید آلات او نور هغه شیان چې د هرې ټولنې د ژوند او تکامل د پاره ضروري دي د هغې ټولنې د توليد طرز بلل کېږي.

د تولید طرز د دوو بېلو بېلو عنصرونو یعنې «توليدي قوتونو» او «توليدي اړیکو» څخه تشکیل مومي.

## توليدي قوت.

د تولید د قوې یا د ټولنې د تولیدي قوې څخه مقصد په لومړۍ

درجه کې د تولید افزار دي چې

د هغو په مرسته مادي شتمنۍ توليدېږي لکه ماشینونه، لومړنۍ مواد د کارخانو تعميرونه او نور

دوهمه درجه کې انسان یعنې کارګران، بزګران او مهندسین دي چې دغه افزار په کار اچوي.

باید د «تولید پر قوت» یو فکري عنصر چې د تولید و تکړ پوهه ده هم ور اضافه کړو. په حقیقت

کې د توليد د پاره فني اطلاعات او په کار کې مهارت لازم دی، او دغه فکري عنصر هم د تولید په کار

کې ګډون لري. نو ځکه د ټولنې تولیدي قواوې:

۱ـ د تولید افزار ۲ـ انسان
۳ـ د تولید تجربه، په پر کې ایږي.

د تولید افزار یې دغه په مرسته مادي شتمنۍ تولیدېږي. او هغه انسان چې د تولید دغه افزار په خپل کار، تخصص کې د تولید د تجربې او مهارت په مرسته په کار اچوي، مجموعاً د ټولنې تولیدي قوتونه تشکیلوي.

وامې تولیدي قواوې د تولید او تولیدي طرز یو اړخ دی چې د خپلو اړتیاوو د برابرولو د پاره د طبیعت د شیانو او قوتونو په مقابل کې د انسان تلاښ را ښیي د تولید او تولیدي طرز بل اړخ د تولید په

جریان کې د انسانانو ترمنځ مناسبات او د انسانانو ترمنځ تولید روابط دي».

هماغه ډول چې بیان شو کېږه او موږ ي روابط اجتماعي روابط دي او د تولید اجتماعي اړخ تشکیلوي.

خلک د طبیعت سره په مبارزه او د مادي توکو د وسایلو د تهیې او تولید په کار کې یو د بل څخه جلا او ځانګړي نه دي، بلکه تولید په ګډه د ډلو او شرکتو په مرسته سرته رسیږي نو ځکه تولید په ټولو

شرایطو کې یو اجتماعي متاع بلل کېږي.

د تولید دغه اړخ چې فردي او اجتماعي روابط په بر کې نیسي اساسي ټکی دی چې د اقتصاد د علم د پوهېدلو او د «ارزش» د تیوري د درک د پاره اړ باید په یاد ولرو نو ځکه باید وپوهېږو چې د تولید روابط څه شی دي؟

د تولید روابط ممکن په متنوعو بشري افراد کولای شي چې د یو داسې کار د سرته رسولو د پاره لاس ه دیوه کړو جوړ ول په آزاد توګه یو د بل سره مرکې کوښښ وکړي څو که څوک د تولید افزار دانیسي

او نور خلک په یو ډول نه ډول مجبوره کېږي چې په دغو افزارو سره وهغه ته کار وکړي نو د تولید د روابطو خصوصیات تو ټیر کوي یا په بل عبارت کېدلای شي چې د دغه روابط دي د همکارۍ او متقابلې مرستې په توګه وي او یا دا د دغه د مړیې د اطاعت او ډېر آزادۍ څخه

دېل آزادۍ د اطاعت په شکل په دې توګه د ټولنو تولیدي طرز د دوو متضادو او نه بېلېدونکو عنصرو څخه تشکیلېږي، د یوې خوا د ټولنې تولیدي قواوې او د بلې خوا د تولید روابط دغه دوه عنصره.

یوازې د تجربې په نتیجه کې یو د بل څخه جلا کولای شو د دواړه په شکل کې داسې وحدت جوړوي چې د متضادو او نه بېلېدونکو عنصرونو څخه تشکیل شوي دي چې دغه په خپله د دیالکتیکي تحلیل یوه نمونه ده.

اوس باید وګورو چې د تولیدي طرز خواص چې په عین حال کې تولیدي قواوې او تولیدي روابط په بر کې نیسي څه شی دي؟

لومړی خاصیت د هغه دا یې تغیر دی تولیدي طرز د تاریخ په جریان

کې خپل شکل ته تغیر ورکوي او تل مخ پر تکامل ځي.

دوهم خاصیت ئې دا دی چې تولیدي قواوې د تولیدي طرز د تغیر سبب ګرځي نه تولیدي مناسبات یعنې په حقیقت کې

تولیدي قواوې یو انقلابي عنصر دی. د تولیدي قواو په منځ کې بیا د قاعدې له مخې د تولید افزار په لومړۍ درجه کې تغیر مومي او بیا نور د تغیر سبب ګرځي

کله چې تولیدي قوتونو شکل ته تغیر ورکړ په یوه ټاکلې لحظه کې د تولیدي روابطو د تغیر سبب هم کېږي. مثلاً په

ملوک الطوایفي ټولنه کې چې د خلکو ترمنځ ټاکلي ډول روابط برقرار شوي دي، نو تولیدي قوه چې لومړی یې د صنعتګرانو په وسیله او وروسته د

سرمایه دارانو په وسیله منځ ته راغلي وده کوي او په ټاکلې لحظه کې اوسنۍ تولیدي مناسبات د نورو تولیدي قوتونو

د پراختیا او تکامل ته تحمل نه منونکي مزاحم ګرځي په دې کې چې سرمایه د کار آزادي غواړي او د هغې طبقې د صنفي منرداتو اجتماعي امتیازاتو

او د مالونو د ګردش د جریان د ګوند پر ضد قیام کوي او نو په دغه ډول تولیدي روابطو ته هم تغیر ورکوي

او په نتیجه کې د تولیدي روابطو د سرچپه کولو سبب ګرځي.

سربېره پر دې تولیدي قواوې انقلابي عناصر دي او د هغه د پراختیا سره تولیدي روابط هم په خپل نوبت سره بدلیږي خو باید هېره نه کړو چې د تولیدي مناسباتو او تولیدي قوو ترمنځ متقابل تاثیر وجود لري. ځکه چې تولیدي روابط تولیدي

قوتونو د چټکه او باپښه کې ی او
د دغه تاثیر څرګندوالی په بېلو بېلو
تاریخي لحظو پورې اړه
لري.

کله چې تولیدي طرز بدل شي
او نوي تولیدي روابط برقراره
شي د کار په سر کې د تولید دغه

روابط د تولیدي قوتونو د ودې
سره مرسته کوي خو وروسته
ددې قوتونو د ودې سټر مانع

ګرځي. ځکه تولیدي قواوې د
خپلو خاصو قوانینو له مخې په
حتمي توګه تل وده کوي او د

موجوده تولیدي روابطو سره
ضدیت پیدا کړي او دغه روابط

کوښښ کوي تولیدي قواوې
شاته وهي او حتی ماتې ئې
کړي.

داسې وخت راسیږي چې
تولیدي قوتونه د پخواني تولیدي
مناسباتو د سره ماتولو د پاره

په کافي اندازه قوي شي. اقتصادي
بحرانونه د تولیدي قواوو او
تولیدي مناسباتو ترمنځ د دغه

تضاد او کشمکش نمونه ده خو ددې
د پاره چې په تولیدي روابطو
کې تغیر منځ ته راشي د تولیدي

قواوو تکامل تراوسه لا تر یوې
اندازې ضعیف او غیر کافي
دی که موږ پوه شو، تولیدي

قواوې وهیږي و دیتو چې یوې
خواته د تولید افزار واقع دي
یعنی انسان دغه په وسیله مادي
شتمني تولیدوي او بلې خواته ئې

پخپله انسان دی چې دغه افزار په کار
اچوي. انسان د تولید افزارو په وسیله
پر طبیعت باندې اغیزه کوي او طبیعت

هم د کار په وسیله پر انسان باندې
متقابل تأثیر کوي انسان د خپل کار
او شرایطو له مخې تل تغیر کوي او
دغه د فردي تغیر قطعي عامل دی.
یو پوهاند په دې باره کې وائي:

«ښکاره ده چې د تولید د افزارو
پراختیا او تکامل د انسان په وسیله چې
د تولید سره رابطه لري صورت مومي،

له بل خوا سره او د انسان خپله مستقیل. په
نتیجه کې په عین حال کې چې د تولید
افزار تغیر کوي انسان هم چې د تولیدي

قواوو اساسي عنصر دی تکامل او تغیر
کوي یعنی په تولید کې ئې تجربه او د

تولید د افزارو په استعمال کې ئې مهارت او
په کار کې ئې تخصص تغیر کوي او پراختیا
مومي.»

د سرمایه داری ټولنې اساسي
تضاد د تولید د افزار و د خصوصي
مالکیت او د تولید د اجتماعي خاصیت

ترمنځ دی. په بل عبارت په بورژوازي
ټولنه کې د تولید روابط د خصوصي
مالکیت پر اساس چې په یوه طبقه پورې

اړه لري بناسوي دي په داسې حال کې
چې تولید کاملاً اجتماعي خصلت لري.
د تولید د وسایلو د مالکیت د خصوصي والي
د خاصیت او د تولید د اجتماعي والي
د خاصیت ترمنځ تضاد چې د سرمایه داري
پر ټولو څانګو تسلط لري. سوسیالستي
تولیدي طرز د دغه پر عکس تولیدي
قواوې او تولیدي روابط هماهنګه

کوي. یعنې د تولید روابط د تولید
د وسایلو پر عامه او اجتماعي مالکیت

پر اساس بناسوي دي. په دې توګه
تضاد له منځه ځي. تردې وروسته
انسان پر تولیدي قواوو تسلط پیدا

کوي او کولای شي چې هر کله ی
د تولیدي قواوو او تولیدي
مناسباتو د هماهنګی د پاره لازم
تغیرات ایجاد کړي.

د تولید د اساسي قوتونو او

تکامل په جریان کې بنځه
ولرله تولیدي مناسبات منځ
ته راغلي دي.

د تعریف له مخې ویلای شو چې
د اقتصاد علم هغه علم دی چې تولیدي
قواوې د تولیدي مناسباتو سره په

متقابل تاثیر کې مطالعه کوي او
د تاریخ په جریان کې پر اجتماعي
تولید او توزیع باندې حاکم
قوانین څیړي.

---

## یوه خوله خندا
## د زاړه او ځوان خوراک

یو سپین ږیری او یو ځوان
پر یوه سټر خوان سره ناست وه دواړه و
ډوډۍ. وختی چې له سپین ږیري
څخه پوښتنه وشوه چې، پر څه
ژاړې؟

هغه وویل: ځکه چې ز
غاښونه لرم او هر شی چې موجود
دی هغه ټول په ځوان وا څخه
وخوړی.

او بیا چې له ځوان څخه د ژړا
علت وپوښتل شو هغه وویل: له دې
امله چې د دغه سپین ږیري غاښونه
نه لري، هره شوله زوندی، ژوندی
تیر وی او زه نه شو ای بسی
رسیدلای.

د (برتراندرسل) په قلم
دفریدی (سلیمی) ترجمه

# برنارډشاو

برنارډشاو د معاصری پېړۍ یو معروف لیکوال، شاعر او ډراماتیست ؤ چې په دا انتهوو ختو کې مړ سو د دې سړی هغه زیاتي اثار په ډراماتیک هنر کې پاتې دي چې تر شکسپیر وروسته دانگلیس په ژبه کې ارزیابي کیږي.

د برنارډشاو په باب ډېری لیکنې سویدي خولاندي لیکنه ژمو یو دېری د معاصر معروف او متفکر لیکوال (برتراندرسل) په قلم ده چې دا لیکوال پخپله هم تر ۹۰ کالو زیات عمر درلود او په دا څو کاله ډېر اندي زمانه کې یې له دې نړۍ څخه سترگې پټې کړیدي.

د معاصری نړۍ د ادبي شخصیت برنارډشاو په باب د یوه متفکر شخصیت برتراندرسل لیکنه پری پېغلي (فریدي-سلیمی) ترجمه کړیده چې په لاندې توگه یې د گرانو لوستونکو ته وړاندې کیږي

د (برنارډشاو) اوږدو ژوند کیدای شي چې ډېر برخونه ووېشو. په لومړۍ برخه کې چې تر څلورېشت کلنۍ پورې رسیږي هغه د خلکو په تولنه کې د موسیقۍ د منقد په نامه پیژندل کیدی.

او په یوه محدوده ساحه کې داسې د خبرو کوونکی فابین سوسیالست، په رومان لیکونکی او د ډرامو او ریاکارۍ د سر سختو دښمن په حیث پیژندل کیدی. په وروسته دوره کې برنارډشاو کمیډی لیکونکی شو. په لومړي سر کې یې نسوای کولای چې خپلې ډرامې په ننداره کې کښیږدي او علت یې داو چې دا ډرامې یې (پاینرو – PiNERO) نه وې

او په وروسته کې د صحنو مدیران هم په دې پوه شول چې د برنارډشاو اثار مزه دار دي او برنارډشاو هغه توفیق حاصل کړ چې د هغه خورا چېره مستحق و. زه گمان کوم چې برنارډشاو له هغه او له هغه دا هیله په ذهن کې پاللې وه چې د مشرو بازاري تودسي توجهې خبرې پکوي. تو دا و چې د عمر په دریمه برخه کې د یو پیشوا په حیث دا دوت چې ویل یې باید (داوږدلیان مقدس جان) او د (مسکو مقدس یوسف) باید یو شی وستایو. ما دي د ژوند په دغو دوو دورو کې ډېر چه پیژندی او د ژوند په لومړۍ او دوهمه دوره کې هم دا ته خوږ او هم مفید ایسیدی او په دریمه دوره کې مې ولیدل چې ستاینه هم حد لري.

ماد شاو نوم په ۱۸۹۰ کې هغه مهال - لومړی ځل له پاره واوریدی چې تازه پوهنتون ته داخلی وم او یو ټول نوی داخلی زده کوونکی می ولید چې د شاو د (ابسینزم روح) کتاب یې په لاس کې ؤ او ډېر پر گران ؤ. خو تر ۱۸۹۶ کال پورې چې برنارډشاو د لندن د سوسیالستانو په کنگره کې گډون کاوه ما نه وی لیدلی. ما د دغې کنگرې د گډون کوونکو هغه المانی نماینده گان پیژندل دا هغه چې پخوا مې د المان د سوسیال ډیموکراسۍ په باب مطالعه کړې وه. دوی شاو یو مجسم شیطان بالله او هغهای چې کوم بحث او جدل ؤ شاو د هغه اور ته لمن وهله. ولی ما خپله عقیده د شاو په باره کې د (بیاتریس وب) او (سیډنی وب) څخه واخیستله.

او په دې مې بیا خوار په څنګ ني راغله چې په خپله مقاله کې یې انګلیسي سوسیالزم له مارکس څخه جلا

کاوه شاو په دغه وخت کې لا په بر کمرو یوه ؤ. او په حقیقت کې باید ووایم چې د هزل لکه دتورو

هزلانو هزل دتورو د لاس اچولو په مداخله کې راتی ه.

په دغه وخت کې شاو تازه ډرام

ایکنی ته لاس وراچولی ؤ او یو ځل ژما اپارتمان ته راغی چې دخپلو ډرامونو څخه یو ډرام

وملګرو په ټولنه کې واوروی. دې پرشرم څخه یې بېغاوتي وه، ریهی ریدی او هیڅ هغه وحشت

تاکه موجود ته ور ته نه ؤ چې په وروسته وروسته کې ما ولیدی لیوروسته ژه او دی او څونور

په مونو تشتیر کړ د (بیاتر بس اوسیدنی وب) په کور کې میدانه سولو. په هغه ځای کې شاو

دډرامی ایکنی نن ژده کاوه. دخپلی ډرامی دخلکو نومونه به یې پر کوچنی څلور کونجه کاغذو لیکل او بیا به دغه خلک چې په صحنه کې به یې ګډون درلود خپل په وهانه دی دسطرنج پر تخته اوچل.

په دغو وختونو کې ژه او دی دبایسکل سپرلی به وخت کې

سره یکړ سرلو اوژه وبیریدم چې بې موانع مې دده دکار سلسله ور پریکړه. شاو په دغه وخت کې تازه بایسکل سپرلی زده کاوه.

دی په خوراسختی ژماله بایسکل سره وجنګیدی ځوله بایسکل څخه په هوا سوا او. اته متره هسته دشا پر تخته

وموبت خو هیڅ په ونه‌وی اد ولاده سو بیا یې پر بایسکل پښه واهوله. په داسې حال کې چې ژما بایسکل مات سوی ؤ

توژه به یو کراد ترین کې سپور سوم او هغې دستګاه ته چې به ترین رسیدی، شاو به بیا ترمخه هلته رسیدلی ؤ. دامهال

به یې تر کې کي مخ را یسته کړ، وخوله به یې را ته کیږه کړه.

شاو پو تر کاری خوره سړی ؤ خو

د [illegible]) پر تراس دشاو او میرمنی سره می دغرمی ډوډۍ خوړل او عجیبه کار ؤ دشاو میرمن پرهواقعي میرمن وه. دی

شاو ته دسپړ یو څخه خراده پښول اودا دومره خوشنوده وه چې دسپي به له خوچو څخه ژوه تورسو. خوشاو به ځان ته راې

کنتور و اولاي چې خپلی شیر پنی کیسی بس کړي. هغه مهال چې به یې دخپل اکا کیسه کوله چې څرنګه یې ځان په

خورجین کې بند کړی او دهغه په تناو نوبی ځان غرغره کړ، اودشاو دمیرمنی رنګه به سپین واوښت او که به سړی دشاو

دمیرمنی اړخ ته ناست ؤ او پښره به یې ولیدله چې دشاو پر خبرو څومره نیسی. خو دداتولو سره بیا هم دغی میرمنی

دشاو دلبری کوله. دامی ښه په یاد دی چې یو ورځ دغرمی دډوډۍ یوه ځوانه ښایسته شاعره هم راغلی وه او غوښتل

یې چې خپل اشعار شاوته واوروی. کله چې ماخدای په امانی کوله شاو راته وویل چې شاعره تجلی پاتیږي. خو کله چې دکوره راووتم وي لیدل چې

تجلی ژماسره روانه ده. دلته می تعجب وکړ چې دشاو میرمن په دا تجلی په څه هیله له شاو څخه بیله کړی

وی. خو څو مو [illegible] وروسته می واوریدل چې هغې تجلی په دې اتر چې شاو عشقبازی [illegible] ورسره کوله

څپله مرۍ پری کړې او ځان یې ووژه. ددغی کیسی په اوریدو می تور اعتراز هم دشاو میرمنی

ته ژباتسوی. دبرنارډ شاد سره هغسی دلبری یو بې فایده کار ؤ.

یو وخت میرمن شاو او شاو او میرمن وب او بیاترلی وب چې عمرونه یې تیر یږ اتیاکلونو ته

رسیدلی په (شاوت دارتز) کې ژما دیدن ته راغلی ؤ. ما په کور کې یو لوی برج درلود چې دسر پوره

څخه یې ډیر ښکلی منظره درلوده. کله چې تر زینو پورته کیدو شاو ترمخه ؤ او میرمن شاو تر

ټولو وروسته. په ټوله لار کې چې پورته تللو میرمن شو وبر له پسې میره ته اخطار ورکاوه چې خبری

ونکړی خوشاو یوه دقیقه هم خپله خوله بنده نه کړه. دملکې ویکتوریا ددوری پرد یاکاری

اوددوا غو دشاو حمله ډیره هم شیرینه وه او هم فایده منه او په دی کې شک نسته چې دانګلیس ټولنه په

دی باب دشاو دین (پور) پر غاړه لري دویکتوریا ددوری له درواغو څخه یو داؤ چې انسان باید کوښښ وکړی چې خپله خود پسندی پټه کړی

کله چې څو ان و م موږ
تولوداسې څرګندوله چې ترخپل
همسایه چه نه یو. شاوله دې کاره

ډهیرڅ او کله چې یې اوازه ډر
لې ې داو څرخیده. لرسی فروتنې
یې څولا شاته غورځولی وه.

ده وچیار ار خلکو بمنع کې دا
دسم سوی څچی وابی شاو چندانې
خودپسند نه ده دی بلکه ډېر صریح

دی خوزه و دوسته وروسته دې
عقیدې نه ور سیدم چې دا بوه
اشپاده. خودوو عقیدوچی ژه یې

دوا قعاتو نا ظروم ده لتیجې
ته ده رت کړم. لومړی یوه څرمنی
میلمستیاوه چې په لندن کې د

(برګسون) په ویاړ جوړه سوی
وه دې میلمستیا ته شاو د برګسون
دصفت کوونکې په حیث راغوښتل

سوی څ او یو څو تنه حرفه یې فلاسفه
چه د برګسون پر آداڅ یې ابراد
درلود هم حاضر وه. شاو په جېرو پل

وکړ او د برګسون د فلسفې توضیح یې
داسې شروع کړه لکه د (مترشالح)
پر ډرامه چې یې مقدمه لیکلی وه.

دشاو دو ابیست د اسې
ټوچې دحرفه یې فلاسفه څ
توجه جلب کړی او برګسون

کرار دده په خبرو کې ورولوید
او وی ویل «نه، نه داسې نه ده»

خوشاو خپلاه خبره بیا تکرار کړه
او وې ویل «قربان! زه ستا په
فلسفه تر تا خو را ښه پوهېږم»

برګسون د قهر څخه خپلی خبری

سره څولی کړی او ټولو دی څ چی سره
وچوی او په ډېر زحمت یې خپله خوله
ونیوله او شاو خپلو خبروته دوام ورکړ.

دوهمه واقعه د (لوی ماساریک)
سره پر خوړدو چې لندن ته راغلی و.
ده د خپل منشي په وسیله سره څو کسو ته

خبرورکړی و چی سهار پر ۱۰ بجې د رسمي
وظائفو څخه پخوا ملاقات ته ورسی زه هم
یوله دغو کسانو څخه وم کله چې ورغلم

نو څو کسه نورهم هلته حاضروه چې په
هغو کی شاو، ولزاو سو بغر تن هم وه
داټوله پروخت راغلل خیر له شاو څخه

چې نور ټول ناوخته راغی او سیده ورغی
او هغه لوی سړی ته یې وویل «ماساریکه!
دچکوسلواکیا خارجي سیاست په کلي

ډول غلط دی» دغه دقیقي په دې باب څه
خبری و کړی او بیله دی چې د ماساریک
دجواب منتظر سي روان سو.

شاو لکه نور ډېر خلک چې د خپلی
پوهی له پاره نکته سنجی څه وسیله بولی
ده کولای سوای چی د هری عقیدې څخه

ولو که هر څو مره هم پملوه په ه چیا ی
دفاع و کړی اووضع یې داسې واخلوله
چې ګڼاده د عقیدې مخالفت کې سوای

نو د حماقت جلوه به یې کوله. ما یو ځل
د (دروهن) په مېلمستیا کې چې
د (ناموېل بټلر) په ویاړ یې کړې وه.

شاو دهغه د هاندهره خبره مثله او حتی
دهغه مسخری یې هم جدي بللی مثلاً هغه

وویل: د «اودیسی» حماسه یوې ښځې
لیکلې ده. مطلب دا چې د بټلر نفوذ په
شاو کی خورا ډېر ؤ او د بټلر په تقلید یې

ډېر زور څخه بد راتلل او وروسته وروسته

د برګسون مریدسو یو عجیب ټکی
دادی چې د بټلر عقاید چې دهغو
په پلمه یې ډېر ښ سره مخالفت

کاوه وروسته دشووی د رسمي
عقایدو جزو ګرزیدل.

د علم په وړاندې دشاو

تحقیری نظرددناع قابل نه ؤ دی
هم لکه نور لستوی یه یې سوای
کولای چې دهغه څه همیت تائید

کړی چی نه په پوهیدی. دژوندی
حیواناتو د تشریح سره پکل
مخالف ؤ. زما په نظر دده ژړه

سوی پر حیوانانو نه ؤ بلکه
د علمی عملو مانر سره یې دبي
اعتقادی علت درلود. همدارنګه

دده ګیا هخوارۍ هم انسانی
انګیزه نه درلوده بلکه دریاضت
کښی سره یې علاقه وه چې د

(مترشالح) ډرامې په وروستي
پرده کې یې تکمیل کړه.

دشاو لوی قدرت په منظره

کې ؤ که یې په حریف کې ضعیفه
نکته پیدا کړی وای یا یې دبا کاری
څیښی لیدلی وای وروسته پر هغه

یې ګوته ایښووله او هر چا چې
په دده عقاید تأییدول دخوشحاله
ټو کو څخه یې خوشحاله ساتل.

دده لومړی بین المللی جګړې په
وخت کې یې خپل اثر (د جګړې

په باره کې حسابي خبره) نشر
کړ. دی صلح طلب نه ؤ څرنګه
چې د دولت د راغبجنی موعظې ی

«پاته په ۳۵ مخ کې»

ژباړونکې بلقيسه «محبوبي»

# غرنۍ پيغله

دژمي ډېره سړه ورځ وه واوره په ډېر شدت سره اوریدل غر او دښتو ټولو دنیا ته یې شان

سپین کالي اغوستي وه غرونه دواړو یې په سپینو طبیعي لباس کښې ډېر ښکلي ښکاریدله

په سپینه واوره کښې د کوچیانو کیږدیو د هر لیدونکي نظر جلباوه اما غرنۍ خلکو د زیاتې واورې

داوریدو له کبله په تنګ وه دا ځکه چې ددوی اکثره څاروي دپوره خوراك د نه رسیدو او د یخ له کبله مړه کیدل.

په دې کیږدیو کښې یوه هم دسلیم خان یعني دقبیلې دمشر

وه چې په هغه کښې (سلیم خان) له خپلې سپین سرې ښځې او پیغلې لور (مریمې) سره ژوند کاوه.

مریمه ډېره ښکلې، نجیبه، او خوش خویه نجلۍ وه دغرنۍ سیمو زیاتره خلکو به په دې فکر کښې

وه چې ښکلې مریمه ددوی د کور میرمن شي خو مریمې به ټولو مرکو ته دمور په واسطه منفي

جواب ورکاوه او ویل به یې زه هیڅ واده نه کوم ما ته یوازې ژوند خوند دا کوي زه غواړم

خپل ژوند له چا سره شریك کړم. اما داسې نه وه مریمې د (رستم) سره چې یو غیرتي ځوان ؤ، مینه درلوده. رستم دسلیم خان یعني دقبیلې دمشر نوکر و. سلیم خان به اکثره وخت ویل چې رستم په غیرت او شجاعت

کښې ساری نه لري سلیم خان په دې نه ؤ خبر چې دده ښکلې لور مره دی دده دیوه زیردستي سره مینه ولري که څه هم

رستم پر سلیم خان ګران ؤ مګر نه په دې اندازه چې خپله لور دې دهغه په نامه کړي.

شپې او ورځې په دغه توګه تیریدلې یوه شپه چې ډېر یخ وه ښکلې مریمه په خپله کیږدۍ کښې په ډېر خواږه خوب بیده وه.

چې ناڅاپه یې د کیږدۍ شا ته د ښپو ټك ټك تر غوږ شو له خوبه راپاڅېده او غوږ یې ونیوه دښپو دغ کرار کرار ددې د کیږدۍ

خوا ته راتلو دی کیدی مریمې له ځان سره وویل «دا څوك دي چې په دې نیمه شپه کښې دونه جرئت لري چې زما کیږدۍ ته دې

راشي» دا دوستانه یې فکر وکړ چې دا به زما ګران رستم وي هغه زما سره سپیڅلې مینه لري هغه وایي چې ستا په

مینه کښې ما ته خپل ژوند او مرګ هیڅ نه دي، حتماً به رستم وي. دا به دې فکر کې وه چې د کیږدۍ پیڅول پورته

شو. په رشتیا رستم ؤ مریمه د رستم په لیدو سره ډېره خوشحاله سره مخې ته ورغله او ورته وې ویل:

آه... رستمه! رشتیا چې زما سره پاکه مینه لرې. آیا ته نه ویریدلې چې څوك به درخبر سي او ژوند به دې له خطره سره مخامخ سي؟

رستم وویل: زه پښتون یم او مینه مې ستا سره ډېره سپیڅلې ده

دا چې زه په دې نیمه شپه کښې ستا کیږدۍ ته راغلم مجبوره سوم او دخدای په امانې لپاره راغلم زه

سبا یې پنځلس ورځې سفر ځم نو مې دالازمه وبلله چې اوس دخدای په اماني درسره وکړم.

دخدای په اماني د کلمې په اوریدو مریمې تکان وخوړ او وې ویل «څېری ځې کمان کوم زما مینه دې هیره کړې؟»

رستم وخندل او وې ویل: نه ګرانې مریمې هر وخت که ما

ستا مینه هیره کړې وه نو چې زه به لیونی سوی یم خو خبره دا ده چې ستا پلار امر کړی دی چې د کلي

خلك دې د رستم په مشرۍ ټول څاروي د پسرلي تر راټسیدو پورې ګرمو سیمو ته بوزي ځکه

چې دلته ډېر یخ دی دا څاروي چې یا ته دې دا هم مړه ځکه نو موږ سبا سهار وختي ځو. مریمې ورته وویل:

ته چې ځې ما چا ته پریږدې رستم — دخان په عوض کښې خپله مینه تا ته پریږدم او زما یو خواهش قبول

کړه هغه دا چې زما مینه به هېروې ستا طلبګاران ډېر دي زه یو غریب سړی یم ستا پلار دقبیلې مشر دی

او په همین حال کې ډېر شتمن دی پلار به دې تاد بو شتمن سړي زوی ته ورکړی ی همدا شتمن خلک دی

چې زما غوندی غریبو خلکو په ژوند سرنوشت او آرزو گانو لوبی کوی او زما آرزوگانی او مینه

به پیسو په بدل کښی ستا د پلار څخه واخلی. زه پیسی نه لرم یوازی یو پاک زړه او سپیڅلی مینه

درسره لرم او بس.

د رستم داد نا امیده یو خبرو پر مریمې ډېر تاثیر وکړی او دې

وویل: گرانه رستمه! ته یقین وکړه چې ما ته د خلکو پیسی څه گردونه او هستی هیڅ ارزښت نه لری زه

تر هر څه د مخه د انسان شرافت، شجاعت او پاک نفسی ته د قدر په سترگه گورم. موږ غریبی پیغلی

ډېری وفاداره یو زه یوازی زړه لرم چې هغه ستا څخه دی او بس. وروسته تردی خبرو مریمې رستم

ته و ویل:

زه . می ان ډېر خفه دی دا ځکه چې پرون دېر گلی او سیدو نکی

ستار خان چې ډېر شتمن دی زما پلار ته دخپل نا اهله او عیاش زوی یعنی کریم خان د پاره زما

غوښتنه کړی وه. مگر بده د ده چې زما پلار د هغه سره رضایت ښکاره کړی مور می هم دا ته و ویل

«لوری ته باید د غریب سړی له خلکو سره واده ونه کړی ځکه چې د وی ډېر سختی ژوند لری. ته باید له کلیوالو سره واده

وکړی خصوصاً له کریم خان سره چې هغه ډېر بدای او ډېر ښه ژوند خوند دی ته که د کریم خان سره واده وکړی

د خوشبخته ژوند میرمن به سی» خو ما مور ته په جواب کښی وویل چې زه قطعاً د کریم خان سره واده نه کوم ځکه چې

هغه ډېر عیاش سړی دی تاسی خوشبخته ژوند په پیسو کښی وینی اجازه ای په شرافت، شجاعت او پاک نفسی کښی وینم

ما ته بیا د کریم خان نوم را وانه خلی.

د کریم خان د مرکی خبر د توپک د گولی غوندی د رستم پر زړه و لگېدی

او په ډېر بې صبری ی وویل: گرانی مریمې! که ته په خپله د چا سره په واده کولو راضی نه سی هیڅ قدرت نشی کولای چې

تا دی په زور د بل چا د کور میرمن کړی په دې لاره کښی یوازی ستا استقامت په درد خوری او بس.

د رستم د خبرو تر تمامېدو وروسته مریمې وویل څو مره کېږی چې یو مهمه موضوع می هم ستا څخه پټه کړی ده

نه می سوای کولای چې تا ته و وایم خو اوس چې ته په سفر ځی او مجبوره یم ی دا موضوع تا ته یاده کړم.

رستم د دې خبری په اورېدو سره ډېر وارخطا سو او وی ویل گرانی مریمې ته باید هیڅ موضوع زما څخه پټه نه کړی

دا ته و وایه چې څه خبره ده.

مریمې، چې د رستم دومره وارخطا یی ولید، وی ویل د هغه وخت را په دی خوا

(مغل) نومی هغه سړی چې په دې منطقه کښی په بد اخلاقی او فسا د مشهور ده دی ما ته آزار رارسوی په هر ځای کښی لکه سایه غوندی ما تعقیبوی او زه د هغه

فساد پیشه سړی څخه دومره نفرت لرم چې تشویر نه کتلای شم:

رستم له ډېره قهره سور او شین

سو او وی ویل دا عجیبه خبره ده چې مغل هم ستا د مینی آرزو لری که مغل پوه سی چې زه ستا سره مینه لرم

هغه وخت به بیا ستا او زما هم پر خوله واله خلی ځکه هغه ما چه پېژنی او ما خپل قوت او قدرت هغه ته

ور ښکاره کړی دی.

مریمې وویل: گرانه هغه ډېر وخت کېږی چې زما او ستا

پر مینه خبر دی ځکه خو وار و ای ما ته ویلی دی که ته زما سره واده و نه کړی زه به ستا او د رستم

په مینه ستا پلار خبر کړم او پلار به دې د رستم د غوښتنی پر زړه کښېږدی

د دې خبری په اورېدو سره رستم

د مار غوندی لی په شان پېچ و تاو شو او وی ویل: گرانی مریمې ته به ووینی چې زه به ډېر ژر د مغل

مور پر خپل یوازنی زوی بوره کړم ځکه چې مغل هم په دې سفر کې زما سره ملگری دی زه به

د مغل حساب ور خلاص کړم.

مریمه - ای گرانه ته د هغه بې وجدانه سره څان په یوه جوال

کښی مه اچوه.

رستم - ته ما په هغه معنی نه پېژنی چې یم زه په مغل غوندی

خلکو باندی لوبی کوم د هغه مرگ ما ته د او بو تر څښلو هم اسانه دی.

رستم او مریمه په خپلو خبرو

کښې دونه ګرم وه چې هيڅ ئې
خپل اطراف په نظر کښې نه وه
نيولي چې زموږ ښا او خوا ته څوك

شته که نه. مګر مغل دوی پسې څارې
کښې تعقيبول او د کېږدۍ شاته
ولاړ او ددوی خبرې یې اورېدې.

و اوریدلی د مریمې او رستم خبرې
لا پای ته نه وې رسېدلې چې د
سپېدو سبېخو وړانګو د شپې تور

پوړنی یې ټوټې کړ. مریمې او رستم
زړه نا ارامه خپلې خبرې پای ته
ورسولې او د پسرلی د ښکلي موسم

تر راسېدو پورې ئې خدای په
امانی وکړه. رستم له مریمې څخه
د دوستۍ د ځل لپاره خوښه وکړه

چې دده مینه هېره نه کړي او
مریمې هم هیله وکړه چې ته هم
ما د یاده ونه باسې. رستم او

مریمې د خدای په امانی په وخت
کښې یو او بل ته دوعا لاسونه
ورکړه. رستم او ددې له کېږدۍ څخه

ووت. مغل هم په یو عالم خوښۍ
چوپ او منډې کړی ته ولاړ او
له خان سره ئې ویل «او په خدایه

ولې دې ما ته ددې ناپاکه زړه
او ناپاکه روح پر ځای پاك زړه
او پاك وجدان نه را کاوه او س

به ولي ښکلې مریمې او د رستم
خلکو زما څخه کرکه کول ویه
خدایه زما ګیله ستا څخه ده. رستم

خو زما ابرو د مریمې و مخ ته پر
مځکه تويې کړې. ده ویل چې زه
به مغل خوندی خلکو باندې کوم
زه باید حتماً رستم په دې سفر کي

مرګ کړم. خپل انتقام به له ده څخه واخلم
او د رستم داغ به د مریمې پر ځګر کښې تر دم
ژوندی او س هم تور دی پریږده چې

په بسې تور شي. رستم زما دښمن دی
زه به حتماً څه مې کړم ځکه چې رستم
هم زما د مرګ عزم وکړ زه به د څخه

تر دی چې هغه خپل تصمیم عملی کړی
څه به مې کړ. او له خان سره یې وویل
زما څخه او په غلطی وسوه کاشکې مې

په همدغه وخت کښې چې رستم د مریمې
په کېږدۍ کښې ؤ. هلته د مریمې مخ ته
وژلی او ښکلې مریمه می به د غه شپه له

خان سره تښتولې وای.

مغل تر سهاره پورې همدا سې
شربرانه او شیطانی تصمیم نه نیول

څو چې د تګ وخت را ورسېد. د غرنی
سیمو قوا او ځوانانو د سفر له پاره ځانونه
تیار کړه او د سلیم خان د کېږدۍ په مخ

کښې سره قول شوه. د کلی زړو او
پیغلانی قوله د ځوانانو د خدای په امانی
لپاره راغو لی شوی وی څو یوازی

مریمه وه چې په دی جمعیت کښې ئې ګډون
نه ؤ کړی ځکه چې ددې طاقت یې نه
درلود چې د پسرلی تر راڅیدو پورې

د رستم جدایی و زغمی او دا یو هیڅه که
چیری مخې ته ورووتی حتماً خلك ددې
په روحیاتو پو هیږي او ددوی تر اشتباه

لاندی راځی ورو ستنه تر دی چې د
مسافرینو کاروان د ګرموسیمو پر لور
حرکت وکړ د مریمې زړه طاقت ونه کړ

او د نورو ښځو په ډول کښې تر پوره ځایه
په مسافرینو پسې روانه سوه. تر څو چې
د مسافرینو کاروان له نظره ورك سو
مریمه په ډیر پر مانزړه د نورو پیغلو په ډل

کښې د کور خوا ته راغلې وه چې
ناڅاپه یو کوچنی ورته وویل
چې د لیری نه خلك پر اسانو

سپاره دی او ستاسی د کور خوا ته
روان دی مریمې چې ورته وکتل
نو د کلی یو سپاهی ته ئې وویل

«ته ورسه چې دا خلك څوك دی
چې زموږ د کور خوا ته راځی»
سپاهی نه ولاړی مریمه دا حوال

تر معلومېدو پورې ولاړه وه څو
چې سپاهی بیرته راغی او مریمې ته
ئې وویل چې د بر کلی ستار خان او

زوی کریم یې خان سره د څو نورو
خانانو سره په مرکه د کریم خان
د پاره راغلی دی.

مریمې پر ډېره خواشینی سوه
جهان ورته زندان سو. پوهېده
چې څه وکړي دا ځکه چې مور او

پلار ئې دواړه په دې راضي وه چې
مریمه کریم خان ته ور کړی په
فکر کې ډوبه ره. هیڅ د حل لاره ئې

نه سوای پیدا کولای د ژوندانه
د سپېڅلتیا د څپو په کله پوی خوا او
کله بلې خوا ته غورځول. د غرنی

سیمې خلکو د نجلی خبره د آینده
ژوند په باب کلو کښې تر مرګه
بتر خبره بولي. نجلی ته دا حق نه

ورکوی چې یو خبره په دې باره
کښې وکړی او مریمې هم هیڅ نه
سوای کولای چې د پلار سره په

دې باره کښې مخالفت وکړی.

سلیم خان به دغه شپه ډیره ښه
میلمستیا و ستار خان او د هغه
ملګرو ته وکړه شپه تیره سوه

پەدفەسپاشپە دمریەم کوژدە دکریم خان‌سرەپە ڤدل
اوسورتا اوتوبکوپەڤزوسرتە وردیدە.
کریم‌خاپرمریمێ سخت میں ڤادکلو راهیشی لی

ددفرشپی انظار درلودلە ڤیری خوشحالی‌لی پرخبلو
ستی‌گو باوری ژچی داصحنەیا لیدل اوپە چێت‌کی ڤ
چی دابەر شتیاویچی مریەمپکل پیفلەددەد کودمیرمن

شوەلەحالێ سرە لی وبل «آ. ژ. خودی‌خرشبختە انسان یم»
خو مریمە برعکس ڤیرەوبرچێ اوغمگینەوە دغەصحنی
چی‌دکریم‌خاندژوند ڤیرە خوپە اوتە هیرپدوتکی

خاطرەوە مکر د مریمی لپارەد ژوند تر خە اونە
هیرپدوتکی صحنەوە. دفکر پەسند کثبی‌ڤوبەوەتە وهیدە
پرکم‌گود وژی‌خوپە آخر کثبی یوبی‌مات او تی‌یدلی

گوددچی‌دخودکثبی پەنامە ڤ دخان دخلاصون لپارە
پیدا کیاولە خان سرەبر وویل «ژ. باید خپل ژوند
لەلاسەورکی‌م خو درستم‌مید لەلاسەورنەکی‌م ماهفەتە

دوقالاس ورکی‌ی‌دی‌ژەنە خوادم‌چی هفەتە شرمندە
سم.»
دخان‌وژلو ترعزم‌او دوستەمریمە ولاڤە سوە بوە

خپی تریاک‌لی بەیرەلوچی کثبی داچول اوحە او بەلی
ودواچرلی چە لی‌سرە حل کی‌ە او دچپلو لپارەلی
تیارکی‌ە. دتریا کولوچی لی‌بە لاس کثبی‌تیولی ڤ اود

دسق سرەلی دخیال‌بە دنیا کثبی خدای‌بە امانی کولە:
گرانەدستمە اتاپە دی کی‌دی‌کثبی وماتە وویل چی‌تە
پەژمامینە دپیسوپە بدل کثبی خرخە کی‌ی خوژەلکە

خرنگەچی وم‌اویم، هفسی تانەوم پیوندلی. زەدخان‌وژل
دیومشکل دحل لارەنەبولم‌خوی مااوس‌دامیددرراژی
ڤولەتپل شوی‌دی نوژە مجبورادی کیلاس‌پە چپلو

سرە خپل ژوند لەلاسە ور کوم‌مگر ستامینەلەلاسەنە
ورکوم نور دخدای‌پە امان دژوند سعادت‌دی غ‌ادم.
کیلاس لی‌خولی تەیورتە کی‌مگرلاسونەلی‌دکیلاس

پەپورتەکولوسرەدبی دیدل‌اودی تەلی دخان وژلو
اجازەنەرکوە خوپایی کثبی‌پەڤیرە دلاوردی سرە
بی‌کیلاس‌خولی تەوردی کی. پەدی وخت کثبی اسمانی

عدالت‌نە غوچتل چی‌بوە پا کە اوسپیخلی مینەدی‌ی

تاکامو هیلوسرەپەخاورر کثیرپڤە سی. پەدی‌حساسە
موقع کی تاحاپەدکی‌دی‌پیغول پورتەسو اوسلیم‌خان
کی‌دی تەداغی‌اووویل «اودی مبارک‌دی‌سە تەبە

بوە خوشبختە‌میرمن‌سی» خوتلی لیدەچی مریمە پەبو
حالم غموکثبی‌ڤوبەدەاولەڤیری ژداعخەلی دستی‌گو
تور او سپین تەمعلومیږی دودخان‌وژلو لپارەلی حان

چمتو کی‌ی‌دی. سلیم‌خان گا وتە ودچابک کی‌ە او
دتریاکو کیلاس‌یی‌ددی لەلاسە وغورحاوە او ورتە
وی‌وویل:

خەپیپەدڕ؟ رشتیاووایەتەخوژماا بولاتی لوداو
پرماگرانە یی‌ژەپەترخپلەوبە ستاهرە خوپختە وخم
خورتە پەماتەحقیقت‌وایی:

مریمەدبلارپەدی ترموخپروالی حەاراهەسوە اوهفە
تەیی وویل: باباکەتە زما دژوند سرە علاقە لری‌او
طلبگارژاو تەپورتەم فی‌جواب‌ودکی‌ەژە دکریم‌خان

سرەوادەنە کوم او زما دخان‌وژلوسبب دغەشی‌دی.
سلیم‌خان‌تەغوچتل چی‌دمریمی دخواپ حخە داسی
خبرەواوری اولی‌ورتە ووویل تەهیغ حق‌نلری‌چی پەدی

بارە کثبی بوە خبرەوکی‌ی‌دا هیغ امکان نلری چی
داخبرەدی پاتەسی. تەپەکوم سبب دهفە سرە پە وادە
کولو کثبی‌رضائیت‌نەلری؟ هفەڤیروصفتوخاوندڕ»

مریمی‌ورتەووبل: هفە صفتونە چی پە یوە کامل
انسان کثبی موجود وی‌هفە یوم‌پە کریم کثبی نستە
ژەقطعاً دکریم غوندی عیاش‌اونالایق انسان سرەوادە

نەکوم.
سلیم‌خان: ژەبەتا دتوماتچی پەزور دکریم سرە
پەوادە کولو مجبورە کی‌م.

مریمە: ژەدکریم حخەنفرت لرم ژمابوڤیرەدی‌چی
هفە درستم حخەدی تاسی‌نەشی کولای‌چی مابەژور
دیوە بدانسان دکورمیرمن کی‌ی.
سلیم‌خان: حە تاچی لە کریم‌خان‌سرەوادەنە کاوە
تەدرستم سرەچی هفەزماژیردست‌دی‌مینە لری؟ ژەبە
اوس کلی خلک بەرستم بسی‌دااستوم هفە بە زاولی‌او
ستاپەمخ کثبی بەلی‌سرلەتنە جلاکی‌م او تاپە مم‌دی
«پاتەدپیتی‌پە ۳۰مخ کی»

(د ۸ مخ پاته)

# په هندوستان کی دمغولی...

که ماغو ندی نور هم وی په دی
کاد په ډیر خوشحال و؟
چی ماغو ندی څوک نشته ځکه
پروت را پاندی غم دی

ایمل خان او دریاخان دواړه په چه
رنګه تیر شول په ننګه کی
د دواړو په فراق کښی څما
تل آه او ماتم دی

دمغولی دوری په تاریخی اسنادو کښی لیدل کیږی هغه وخت چی اورنګزیب پوهاوی ته راوګرځیدی

نوده وکولای شوای چی دپښتنو څینی قبائل لکه بنګښ او دپیښور ولسی سیمی دځان تابع کړی

ددی خبری تائید کامل صاحب داسی کوی «بادشاه دحسن ابدال نه پاینخت طرف ته هغه په دوران

کښی دخوشحال خان او دمغولو طرفدار افغانو بنګښو سر دار شیرمحمدخان د کوهاټ دلمرختیز

دکنبټ په مقام کښی مقابله وشوه خټکو شکست وخوړ او خوشحال او ده زوی عبدالقادرخان ژوبل

سوه» ددی جنګ څخه ۷ میاشتی وروسته او داورنګزیب خپل زوی معظم خان په پښتو تخوا کړ د

فوجی عملیاتو لوی قوماندان مقرر کړ د شاه عالم لقب ئی هم ورکړ شاه عالم دلوی امیرانو سره چی

په هغه جمله کښی امیرخان هم شامل

وکابل ته دراتلو نیت وکی د شاه عالم په سپارښت امیر خان د کابل صوبه دار وټاکل شو. دوی په ګډه سره داکوښښ کاوه چی خوشحال خان د ځان ملګری

کی او په دی ترتیب سره د پښتنو او مغولو داو ډدي د جمنی آخر قول کړی، شاه عالم، امیر خان او د مغو ملګری چی ایکی ته راولیږدل خوشحال خان ته

ئی د دوستی پیغام وروليږی خوشحال خان ونسو ای کولای چی د امیر خان خواهش رد کی. دا ځکه چی دخوشحال خان په

خلاصولو کښی امیر خان ډیر کوښښ کړی ؤ او خوشحال خان ژړه نه ورڅه پیښور ته ورغلی خو باید ووايو چی دواړی

خواوی د جنګ څخه ستړی شوی وی. دا وخت دخوشحال خان نږدی ملګري ایمل خان او دریاخان هم وفات شوی وه

او ده زوی بهرام خان دمغولو لاسته ورغلی ؤ. نو خوشحال خان په سترګو لیدل چی ده ی خوا څخه بیا هم په میدان پاته دی

اوده را الی قوت ئی هم په ځان کښی نه لیدی د مغولی حکومت د پاره د پښتنو د ۱۶۷۳–۱۶۷۵ کالو قیام داسی اقتصادی

بار ؤ چی په امپراطوری کښی یی اقتصادی بیه، الو ته لاقوت ور کاوه. اورنګزیب په ظاهره خلکو ته د اښوولی وه چی

دپښتنو قیام ده دماتی سره مخامخ کړ ولیږ او اورنګزیب شکست نه یوازی خوشحال خان په خپلو اشعارو کښی ځای

پر ځای ترسیمولی بلکی «هندوچی» ناهتو

مؤرخین هم دا اورنګزیب په باره کی په څرګنده ویل ښایی چی ۱۶۸۲–۱۶۷۵ کالو په جنګو کښی اورنګزیب د پښتنو په مقابل کښی

ماتی وخوړه. د هندوستان مؤرخین د اورنګزیب او پښتنو دجګړو په باره کی لیکلی چی مغولی امپراطوری ددی جنګو نوله

درکه درانه مالی تاوانونه پر امپراطوری تحمیل کړل.
له: ده تاریخ نه وروسته نور

نو مغولی امپراطوری دا قدرت نه درلودی چی پښتانه دراجا ګانو او راجپوتانو په مقابل کښی

د وسیلی په شکل استعمال کی.
د ۱٦ پیړی په وروستیو کلو کښی او د ۱۷ پیړی په اوایلو کښی

د روښانیانو نهضت او په ۱۶۷۰ کال کښی دپښتنو ملی قیام چی خوشحال خان په هغه کی دملی قهرمان په

حیث ګډون درلود ونه کولای سوای چی خپلی ملګړی دخارجی اشغالګرو یعنی مغولی استعمار

څخه په کلی توګه ازادی کړی. ولی په دی کی شك نشته چی د غو ملی قیامو د پښتنو د اویو تودود

اجتماعی شعور په ویښولو کی زیات تاثیر درلود او د پښتنو د راتلونکی ملی واحد د پاره ئی زیات شرایط

برابر کړل. «نور په ۳٦ مخ کی»

(د ۱۰ مخ پاته)

# په ملی جنبشونو کی د ادبیاتو...

په قرون وسطی کی هر څه د کلیسا د متعصبو کشیشانو له خوا تر تهدید او تردید لاندی وه. د دوی نا پوهی د صنعت مخه نیولی وه او د کاغذ جوړول یې هم له دې وږده او هغه کتابونه چې په یونانی او روم کی لیکل شوی وه د هغو تودی به یې کوډه کول او بیا به یې د نیول سحر او جادو خبری پر لیکلی په

دغه جریان کی د بشری فرهنګ لوی میراثونه ضایع شویدی او په دغه ای کی د هنر په باب چې

هر څه لیکل شوی شیان پاته وه هغه تر ډوره زیات متضرر شول. ددې علت دا وو چې د کلیسا کشیشانو

هنر د شیطان تخلیق باله. د شاعر کلام یې د شیطان کلام باله، شاعران یې د شیطانانو ورونه

بلل، نو ټول هنرونه لکه مجسمه سازی، نقاشی او موزیک یې ډیر ناغندل او دغه علت دی

چې په قرون وسطی کی دا هنرونه ډیر وده ونه شوه خو کلیسا او د هغې کشیشانو د فکر او تخیل سره

خپله د ښمنی جاری وساتله.

دا چې د کلیسا او کشیشانو خوا د فکر او تخیل سره دښمنی

کیدله نو دې فرهنګی دښمنی اساسی علتونه درلودل.

د منځنیو پېړیو د تو نر زیربنایی مؤسساتو د هغو مؤسساتو پر روبنا اغیزه درلوده. د دغه وخت د ټولنو اقتصاد پر زراعت ولاړ او اقتصادی

مضمون یې فیوډالزم و. په فیوډالزم کی د بزګر او ملاک مسئله په ډیر قوت مطرح وه. دا بزګر چې موږ یې ان و بلو د منځنیو

پېړیو بزګر ته د پادار حیثیت لری. هلته یو بل ډول بزګر و چې هغه ته یې (سرف) ویل دا سرف لکه د غوبي دا سی حیثیت یې درلود

مثلاً ان یوسیږی مځکه خرڅوی نو د یوی غوبي هم ده ته بیکاره کیږی هغه هم ورسره خرڅوی، په هغه وخت کی بزګر

هم لکه غوبي دا سی و چې د مځکی سره په یو ځای خرڅیدی.

(موږ هم د خپل اجتماعی تحولاتو

په دوران کی د غسې بزګر درلودلی دی چې ورین په کندهار او هلمند کی مثل پاته دی چې دا یې فلانکی لکه د غلج بزګر

بوخ ولاړ دی. دغه بوخ ولاړ بزګرانو هغه د قرون وسطی سرف دی).

د منځنیو پېړیو یو بزګر چې

شکایت یې د (قرون وسطی د غلګرو) په کتاب کی را نقل شوی دی داسی وایي:

«صاحبه زه خو ډېر کار کړم.

ژمی او دوبی ته لرم د ژمي په یخ کی مځکه خیرم او د دوبی په اډینه ګرمی کی غنم باد کړم خو بادار می را څخه خوشحاله

نه دی که په ناجوړی کی هم یوه ورځ د کار. پاته شم او وهل کیږم او که بادار می مې کیږي وازخواست می. څرک نه کوی

دا می حال دی!!»

په منځنیو پېړیو کی چې اقتصادی اوضاع د یوه زیربنا په

حیث دا سی وه او اجتماعی جریانات چې د روبنا حکم لری د هغو په باب سړی پوهیدای شی چې فرهنګ

باید د لوی تهدید سره مخامخ وی.

په ادبیاتو کی دا مهال یوا ځی د تورات زړه ی قیصی

(کیسی) رواج وی دا کیسی مقدسی بلل کېدی او په کلیسا کی د ننداری مراسم هم وخت ناوخت

اجرا کیدل د ننداریش پاتندارزه به (درمزنو لوبی) بلل کیدی او د کلیسا ملایانو او طالبانو به هغه

لوبولی. د دغه کیسی د مسیحی کشیشانو د ورته په باب وی. دغه منحط جریان د عصر پر فرهنګ

حاکمیت کاوه.

تر کلیسا را لاندی ولسونه د یو رکود او خمود په حالت کی

پراته وه. په هغو وختونو کی د ملیت احساس نه و لکه دا ان چې ویل کیږی دا ولس انګلیس دی دا بل

جرمنی او دا بل ایټالوی یا فرانسوی دی. په هغو وختونو کی یوا ځی د پاپ په حیطه کی ټوله

مسیحیان بلل کیدل او پاچهان به د پاپ په اعتماد او اعتبار مقرریدل.

دغه مسیحي ټولنه په وروسته
کې د کلیسا تر تسلط لاندې داسې
سوې وه لکه د یو مستقل ناروغه

څرنګه چې اینګه وتړل سي او
لاندې يې خپله وپرسېږي دغه
پرسوب د منځنیو پېړیو د دوران

په اواخرو کې د ونه ژیات سو چې
په چاودنه يې د رنسانس دوره
شروع سوه.

په منځنیو پېړیو کې چې تقریباً
څه کم زر کاله يې دوام وکړ
هنر په هره برخه کې خفه ؤ خوبه

ادبیاتو کې د اخفه ګي تر هر څه
زیاته وه.

کلیسا د پیریانو کیسې کولې

خو د لاندې په ولسونو کې یا په
بل عبارت څرنګه چې علته لاد
ملیت په اساس واس پسې نه وه سوې

نو خلکو د خپلو ساعت تیرولو پاره
عوامي ادبیات درلودل. دغه
وخت هغه د فکر او تخیل خاوندانو

چې مستقیماً يې د کلیسا یا د کلیسا یې
جریان او دربار پر ضد څه نسوای
ویلای نو په رمز او قراردادي ډول

په بې کیسې جوړولې. دا د لمري
او ګیډه ی کیسې چې ان هم په
موږ کې رواج دي اصلاً هغه

وخت رواج سوې.

په عمومي ډول په منځنیو پېړیو
کې چې د ۴۷۶ میلادي کال څخه
شروع سوې او تر ۱۴۵۳ میلادي
پورې يې دوام وکړ، بشري
فرهنګ د کلیسا له خوا پلکل
پایمال سو.

د پنځمې پېړۍ څخه تر یوولسمې
پېړۍ پورې یوه کامله تکه توره
دوره وه. او په دولسمه پېړۍ کې

د کلیسا پر ضد عکس العمل نه
راپورته سول. په دیارلسمه پېړۍ کې
ملي احساسات په اروپایي ولسونو

کې راژوندي سول. په دوولسمه
پېړۍ کې په انګلستان کې
(ګلنا کارتا) یا (لوی منشور) په

(جان باچا) لاسلیک سو او دا نو
د لومړي ځل له پاره یو داسې
قانون ؤ چې په هغه کې د باچا

صلاحیت په یو ابتدایي قانون
رامحدود کېږي. په ۱۲۰۰ میلادي کې
د پاریس پوهنتون په ۱۴ ۱۲ کې

د اکسفورډ پوهنتون په ۱۲۲۴ کې
د ناپل پوهنتون او په ۱۲۳۱ کې
د کمبریج پوهنتون تاسیس سو، خو

دا پوهنتونونه بیا هم یواځې د
الهیاتو د تدریس مرکزونه وه او
یواځې يې د کلیسا له پاره د طالبانو

څخه کشیشانو جوړول د کلیسا ځینو
کشیشانو له دغو ټولو کسانو سره
هم دښمني کوله او دوی به يې په

په ارتداد محکوم کول په دغه
وخت کې هر څوک چې په مذهبي
چارو کې په یو څه پوهېدل هر ډلي

پر بلي ډلي د شیطانانو حکم کاوه.
دغه ګیرودار په لږ کې
ورو ورو لږه سختګي دو ډولي

او کلیسا خپل حیثیت له لاسه ورکاوه
خو د رنسانس د سپارډ اپر دا څېره
سوه.

هغه مهال چې د قرون وسطی

او ورده او تیاره دوره پای ته ورسېدله
نو تاریخي پوهان وایي چې لومړی
قسطنطنیې سقوط وکړ. دا سقوط داسې ؤ

چې ترکانو دا ښار فتح کې او د هغه
د کلیسا کشیشان چې د سلو کالو راپه دې
خوا يې د دغه ښار په معروفه کلیسا کې

پر دغه مسئله بحث کاوه، چې که
ملایکې وزرونه لري او شیطانان په
ښځې الوزي، چې ترکي سپاهیان

ورننوتل او دوی يې په څټ څټ کې وهل
او شړل يې.
دا واقعه په ۱۴۵۳ کال پېښه سوېده

او د تاریخ د یوې بلې دورې چې
رنسانس یعنې په ادبیاتو کې د نوي ژوند
معنی لري د شروع کېدو نیټه ده.

(بحث دوام لري)

## پردې متلونه

ژوند په اوښکو شروع او په اوښکو
پای ته رسېږي.
(سویډني)

یو سړی سل کاله ژوندانه کوي
خو د زرو کالو خیال پلوي.
(چینایي)

که ته هره ورځ ښایسته کالي
واغوندې نو یکشنبې ته به څه در پاته سي.
(جاپاني)

که پیسې و لرې هیڅوک به و نه پېژني
او که يې و نه لرې هیڅوک به تا و نه پېژني.
(اسپانیایي)

څوک چې دروغ وایي نو غلا هم
کوي.
(تانګانیکایي)

د(۱۳)مخ پاته

# مرحوم محمد ګل نوري له موږ څخه...

دهیواد له فرهنګ او فرهنګیانو سره د دوستۍ زمینه برابره سي او هغه بې دردي چې په تېر نظام کې بې د نوري غوندې ډېر نور هم پایمال کړي وه، پای ته رسېدلې وي.

هو انوري ولاړ او ړوند ژوند ولاړ خو د ده غمجن ژوند به مې هېڅ له یاده ونه وزي.

## د مرحوم نوري لنډه پېژندګلوي او آثار

مرحوم محمد ګل نوري د منادي د میانو محمد صاحب امسی او په اصل کې د کندهار د یخ کاریزو خو د کندهار په ښار کې اوسېدی او ټول عمر یې په کابل کې په فرهنګي ماموریت کې تېر کړی ؤ.

د ده عمر ۷۳ کالو ته رسېدی او د ۱۳۰۰ کال څخه یې لومړی د پوهوونکي په حیث کار شروع کړی ؤ بیا د کندهار د ادبي انجمن غړی سو، بیا د پښتو ټولنې د لغاتو مدیر سو. د عمومي مدیریت تر څوکۍ پوري ورسېد خو بې تقاعدو کړ.

وروسته ډېری خوږي پر ورغلي او د ژوند د دوستۍ وظیفه بې د کندهار په مطبوعاتو کې تېري سوې.

د ده ولیات شعري آثار لیکلي دي چې یوه برخه یې چاپ سوې او نوري لا چاپ سوي نه دي د ملي هندارې دریم ټوک یې د مرګ څخه یوه هفته د مخه له چاپه راووت خپل د غه اثر یې د هېواد د جمهوریت موسس او د جمهوریت وفادارانو ته اهدا کړی دی.

د نوري نور آثار د ده د یو مصاحبې څخه چې پر کال د مخه نشر سوې وه دلته راقلوو. دی خپل آثار داسې بیانوي:

الف: چاپ سوي آثار:

۱- ایک ښوونکې دوه ټوکه لومړی جز یې د انشا اصول او دوهم جز یې مراسلات دي چې په ۱۳۱۷ کال چاپ سوی دی.

۲- ملي هنداره دري ټوکه دوه ټوکه بېل بېل چاپ سوي دي.

۳- پښتو اصطلاحات یو ټوک چې په ۱۳۲۰ کال چاپ سو.

۴- ملي سندرې او ناري یو ټوک.

۵- متلونه یو ټوک.

۶- طبیعي پوهنه یو ټوک.

۷- دنیاتو ته څلور ټوکه.

۸- مدني اخلاق دوه ټوکه.

۹- مدني معلومات دره ټوکه.

د دغه ورته څلور کتابونه د معارف د کتابو څخه ترجمه دي.

۱۰- پښتو قاموس چې ۴۵ زره لغاته لري او ۴۵ زره سره پر ۵ زرو کارټونو باندي ولیکل شوه او وروسته زما د لور (طبیبو) په مرسته هر لغات د ردیف په لحاظ تر وروستي حرفه پوري پر ردیف برابر کړه شوه او په دره ټوکه کې چاپ شوه مګر زما خواري عبث ولاړه ی او تو موږ دی قاموس د پښتو ټولني په نامه چاپ سو.

۱۱- رحمة للعالمین کتاب دی چې د مصري محمد احمد جاد المولی تالیف شوی کتاب څخه ترجمه دی او په ۱۳۴۱ کال کې د کندهار په دولتي مطبعه کې چاپ سو.

ب: غیر مطبوع آثار.

۱- ملي لوبې یو ټوک.

۲- پښتو آهنګونه چې تر ۲۰۰ زیات آهنګونه لري د آهنګونه ښاغلي فرخ افندي زما په لارښوونه په پیانو کې غږولي او وروسته یې د هغه څخه نوټېشن ترتیب کړی دی.

۳- ملي دود یو ټوک.

۴- خوږ بانډار دري ټوکه چې ټول حکایتونه او فکاهیات دي

۵- د خوشحال خان حل اللغات یو ټوک.

۶- د عبدالقادر خان منتخبات یو ټوک

۷- د احمدشاه بابا منتخبات یو ټوک.

۸- پښتو یادښت د پښتو د زده کړي طرز دی یو ټوک.

۹- د اوحد غزنوي تصوفي کتاب دی یو ټوک.

«باقي په ۳۵ مخ کې»

د (۱۳مخ پاته)

# حقیقت او د هغه...

جامدو احکامو پر اساس استدلال چې د علمي بديهيا تو او جزمياتو په غير اعلان سره وي چې هيڅ به له يکښې ور بل کېږي، په داسې

فاکټو سره، مهره بازي چې يو د بل سره د ترکيب او متناسب منطقي پيوند نلري، يو اډ خيزه شيوه يعنې د يديدو د هغوا ډ خو ليدنه

او د دې محدودوا ډ خو په مرسته سره د هغې د توا ډ خو توضيح.

ايراسيونا ليزم: يعنې د تفکر له منطقي اصو لو څخه انحراف

د غير مستدلو او پر واقعيت بانه ي د نا ولاړو، خرافي، الهام آميزه او افسا نوي اډ عا گانو بيانول.

دا ټول او داسې نور په حقيقت کې د کږوږې بېل شکلونه او اسلوبونه دي.

صحيح تفکر يو مشکل کار دی

ځکه د عين (واقعيت) او ذهن (دماغ) تر منځ ژور تضاد سته. ذهن يوازې په زمان او مکان کې په محدوديت اخته ده د بشري

حوا سو د پيژ ند نې قدرت هم محدود دی. د علمي او تجربي افزارو د پيژندنې قدرت سره د دې چې د انساني حوا سو د پوهنې

پر قدرت باندې زيا ت وب ورا و لی او مرسته ورسره کوي خو هغه هم په خپله روڼ محدوديت لري ذهن يو لړ دا خلي قوانين لري

چې کله کله د پيچلو پديدو د درك کار زيات مشکل ګرځوي مثلاً د پر و سو ساده کولو او متحجر کولو، د پيژندل سوو سره د نا پيژندل سوو پرشې کولو، د سره ورتو، مشابهو او شبيهو سره ګډو لو ته ميل د لړ اړزو ي په مصر فولو سره د حد ا کثر نتيجې واخستلو ته ميل، د محد ودو او ټيټو اجزاؤ د روڼدانه کېدو په صورت کې د کلي او جامعي منظرې د ارل د پاره کوښښ او نور دونور.

د بلې خوا د پيژندنې شيان (عين- ابجيکټ) په زمان او مکان کې نامحدود دي. فوق العاده پر له پيچلې جزئيات (سقر کچر) او بې نها يته پو ل زول ارتباطات لري. ځينې خواص ئې ژموږ د حوا سوو معرفت ته تن نه ورکوي او ځينې وختي لا ژموږ د تجربي وافزارو او و محاسبې ته نه تسليميږ ي. عينيت يا واقعيت په دايمي تحول کې دی او پر له پسې ئې حالات، خواص او اشکال يکښې ور پيدا کيږي.

ځکه نو د يو انسان په انفرادي ذهن کې د واقعيت جامع، مطا بق او دقيق انعکاس ډېر مشکل کار دی خو بيا هم د واقعيت درك او په حقيقت پو هيدل امکان لري او انسان د ليدنې تجربي، محا سبې، مقا يسې، منطقي تعميم، د فاکټو تدوين او نورو منطقي، تجربي او رياضي متودو په مرسته باندې قادره دی چې ګام په ګام او پښت پر پښت واقعيت څه پسې جا مع، دقيق او هر اړ خيزه درك کړي، له همدې کبله د لاادريت (اګنو ستيسيزم) مکتب چې حقيقت ته رسيدل محال بولي، پر غلطه دی.

پر اګما تيزم: حقيقت او مصلحت

سره مساوي بولي او عقيده لري چې د عمل (که څه هم انفرادي عمل وی) د پر وسې د پاره چې هر څه ګټور وي، هما ئه حقيقت دی.

مصلحت بو ه پرا ګسيو لوژ يکه مقوله ده او د هغه لپ تدبيرو مجموعه ده چې وهدف ته د رسيدلو د پاره په درد وخوري او ګټور

وي هر ګټور او په درد خوړ ونکی شی لزوماً حقيقت نه وي. کله کله د حقيقة ضد لکه دروا غ، خرافات ماکيا وليزم، ضد اخلاقي او ضد اجتماعي روشونه ويو هدف ته د سيدو د پاره ګټور او په درد خوري، خو آيا حقيقت ئې بللای سو؟ منلی ده چې نه!

د يوقا نون په تو ګه ويلای سو چې حقيقت هر وخت کار ورکوي خو که د حقيقت ضد په محدودو وخت کې کار ورکړ ي، يو موقتي او تېر يدو نکی خبره ده او تر يوه موده وروسته نا ته خوري د کار ورکړه او حقيقت سره برا بر دی خو دلته وخت د پاره د حقيقت ضد هم ځان په در د خوړ ونکی ښکاره کوي.

د بليقيو يزم: عقيده لري چې حقيقت دومره نسبي دی چې هيڅ شی عملاً حقيقت نه دی دا خبره دا سې ن په لاس ته ر اوړل سوو حقا يقو کې د مطلقو حقيقتو له سيم څخه انکار دی حال دا چې د انسانی پوهنه

کېږي. په کېږي په خپل مضمون کي داسي اجزا پیدا کوي چې د زمان په تیریدو سره هېڅ تغیر یا ماهیوي تغیر نه کوي او دا اجزا هماغه د حقیقت مطلقه برخه ده یا مطلق حقیقت دي.

د حقیقت په تیوري کي یو مهم ټکی د ذهن او د خارج تر منځ رابطه ده. واقعیت په مغز کي انعکاس مومي او له دې لاري څخه په ژبه کي منعکس کېږي د ژبي لغتونه (لغتونه) په دماغ کي له منعکس واقعیت څخه د انسان له خوا امنځ ته راغلي علامي دي، ځکه نو نسبي دي. په خپله ژبه تر پیدا ښت وروسته یوازي پاسیف او منفعل تاثیر نه لري بلکه په خپل دوڼ د انسان د پوهنې پلټونکي فکر په تنظیم کي یو ډول فعال رول لري ځکه د منطقي ساخت او فکري احتجاج آلات او افزار دي. معاصره مثالونکو پسنی یکې Meta-linguistic نومیږي د ژبي ته د «جهان بیني چوکاټ» پر قدرت قایله ده چې البته یو اغراق دی خو ژبي له نسبي فعال رول څخه څوک نشي منکر کیدلای.

د حقیقت درک او د صحیح پوهني ته د رسیدلو د پاره د انسان ذهني discursif یا منطقي حرکت د صحیح او غلط یو احتمالاتي حرکت دي. تردید او یقین، خطا او صواب د حقایقو د پوهني په پروسه کي نه سره بیلیدونکي ډیالکتیکي جوړه ده. هیڅ پوهنه د «څېړني، پلټني او غور» له مرحلي څخه پرته چې په معنی کي نسبت وته یو ته پرد «بیطرفی» حالت وجود لري د نتیجې اخستلو مرحلي ته نشي رسیدلای د نتیجې اخیستل په مرحله کي په لومړي سر کي تر یوي زیاتي اندازي نتیجې په لاس راځي او تر منځ یې تردید او نوسان حتمي دي ځکه هغه نتیجه باید تشخیص کړو چې په عمومي توګه تر ټولو صحیح ده.

د څېړني او نتیجو تر منځ د نوسان په جریان کي کله کله غلط سنجشونه او فکرونه حتمي وي. پوهنه په یوه زګزاګ روش سره په یوه مارپیچ (سپیرال لوپه) مسیر کي د حقیقت په ور ودي کېږي ځکه نو حقیقت ته د رسیدو لو د پاره د پوهي علمي وجدان ساتنه د تردید امکان او د خطا د امکان په نظر کي نیول یو شرط دي. هر ځای چې د څېړني ازادي، د تردید امکان او د خطا امکان سلب شي د حقیقت پلټنه هم نفه کېږي.

(د ۲۵مخ پاته)

# برنارډ شاو...

نسواري تحمل کولای نو په ډېره وسیله یې دوطنپر ستانو خشم او قهر راو پارځاوه له دي لحاظه یې کار ډیروستایل سو. خود اوږ چه په خپله هم دشو وي د خبرو ښکار سوه. سره له دي چې په مناظره کي ډېر به ږ کله چې یې غوښتل خپل عقاید تشریح کي نو ګوچ کوچ به کېدی او عقاید به یې مغشوش وه. مګر په اخر کي پوره مارکسیسم ته تسلیم سو.

(د ۳۳مخ پاته)

# مرحوم محمد ګل نوري...

۱۰ـ د پارلس نکلونه یو ټوک.

۱۱ـ د میثور رساله یو ټوک چې یوه برخه یې د کابل په مجله کي چاپ سوي ده.

۱۲ـ د نوري دیوان مکمل نه دي مګر اکثره یې د هیواد په څینو جریدو کي نشر شوي دي.

د کندهار چې د دې دلرغوني ولایت د زړو خرابو او غونډیو تعریف او جایزه یې هم اخیستې ده.

ج: ژباړه شوي کتابونه:

د روغتیا عمومي قواعین یو ټوک د عه کتاب د عربي (کیف تحافظ علی صحتک) له کتاب څخه ترجمه شوي دي.

د روغتیا ژوندون یو ټوک د «کیف تعاش ما ئته سنه» عربي کتاب څخه ترجمه شوي دي.

د صحت ساتنه د (حفظ الصحی) د کتاب څخه ترجمه شوي چې د طلوع افغان په ورځپاڼه کي پښتې پر له پسې چاپ شو دی

٤: د شین خالی داري.

۷۲:٥ ډبالو کوته او ډرامې چې زیاتره یې د هیو د په بیلو بیلو ځایونو کي په صحنو کي تمثیل شوي دي.

ترڅو کلو پوري د ملي شوراد اصولنامو ترجمه هم د ده په غاړه وه.

همدغه ډول مي لا ندې یوځو ټوکه کتابونه د بدخشی مرحوم له کتابه څخه را نقل کړي دي چې پښتو دري او د سنالي او پښتې لغاتونه مي هم پر اضافه کړي چې د ۹ملي ژبو لغاتونه مي په یوه جمله کي په ۹ ستونه کي د یوه مکمل قاموس په شکل ترتیب او دليکل چې نوموړي کتابونه عبارت له سنګچې قاموس، شغني قاموس، واخي قاموس اشکاشمي قاموس او منجي قاموس څخه دي.

د (۳۰مخ پاته)

# په هندوستان کې د مغولي...

خوشحال خان د ډیرو سیمو پښتانه
د ګټې دښمن په مقابل کښې سره
یو ځای کړل ولې د کرمې له خوا

ئې ملاتړ ونه سو ترڅو او عجیبه
خو دا ده چې دده ملي قهرمان خپل
زوی دده سره په یوه فکر نه ؤ

د خوشحال خان دوهم زوی بهرام
خان ئې د مغولو لاس ته ورغی او
په هیڅ ډول عمل بې صرفه ونه کړ

خپل سپین ږیری پلار یې یو
خوا بل خوا ته ځغلاوه او خپل مشر
ورور اشرف خان هجري یې چې

خوشحال خان د خټکو په مشرۍ
ټاکلی ؤ په ١٦٨٣ کال کښې
د مغولو به لاس ورکړ. مغولو

هجري د هندوستان بیجاپور
جیل خانې ته واستاوه ملته لس کاله
بندي پاته سو څو ملته په جیل کښې

وفات سو. هجري خپل بند داسې
بیانوي:

څو په تخت باندې قائم دی
اورنګشا

په تو کری د هیڅ پښتون
نه کاویسا

ټن اعاز دلسم کال دی
باورو کړه

چې په بند کښې بې ذهیر یم؟
بې ګناه

خوشحال خان په خپلو اشعارو کښې
ډیر ځای له بهرامه سر ټکوی
او په یوه شعر کښې حقه ته داسې خطاب
کوي.

تا هغه سر دار دی نه ده بهرامه
سر داري دې پخپل دور کړه بدنامه
هم تمامي خپل خانې سره بلاشوې
هم خپل ځان له ره بلاشوې بدفرجامه
تا خپل ځان له رحمه د مرګه
پیدا کړه
خپل خانه دې په بد خوې کړه
بې آرامه
نوردې لوم زما د زوی په شمار
مه شه
د خوشحال خټکه ویناپه
دا تمامه

وائي خوشحال خان د بهرام خان په حصه
کې داسې وصیت کړی دی که چېرې بهرام
د خوشحال خان د ژامنو په لاس ورغی نو
په ئې په توره دوې ټوټې کړي چې نیم د
خوشحال خان د مقبرې سر ته سوځی او نیم
په ئې د مقبرې پښو ته سوځي.

د خوشحال خان د ژوند ورو ستي
کلونه د مصیبتونو او لوبو کارنامو کلونه
وه د څه عالي شخصیت په ١٦٨٩ کال کښې
د اپریدو د علاقې د موسی درې ځمې
توی غره کښې چې د خپل زوی بهرام
د تعقیب څخه ځان خلاص کړی، ملته د ٧٦
کال په عمر وفات سو.

حقه ارزما او نه چې خوشحال د پښتنې
اولس د تاریخي ضرورت په اساس په ژړه
کې کړ ژول، ترسره نه شول او په ډیر
ارمان ئې له جهانه سفر کړی پټی کړی. لکه
څرنګه چې په دې بیت کښې څرګندوي.

اتفاق په پښتنو کې پیدا نه شو
ګڼې ما په د مغول ګریوان پاره کړو

## فولکلوریک هنر

فولکلوریک هنر د خلکو
د فرهنګک و پوهنې یوه برخه ده
چې په ځ بره عامیانه شیوه سینه
پر سینه را نقل سوی وي. خو
د مبالغې او توهم څخه خالي
نه وي. له دې امله نو هنري منطق
ئې څه کمزوري وي.

د ژوند او طبیعت واقعیتونه
په فولکلوریک هنر کې په کنایه
آمېزه (سمبولیک) توګه
څرګندیږي. او ټول واقعیتونه
په خاصو تاکیداتو او کله هم په
مبالغه سره انعکاس کوي
فولکلوریک هنرمندان زیاتره
وختونه ګمنامه وي او څوک ئې
نه پیژني. د څو هنرمندان اثار
غالباً له یوې سینې څخه بلې سینې
ته او له یوې حافظې څخه بلې
حافظې ته انتقال کوي.

د فلکلوریک هنر ادبي او
هنري اثارو د اټولو کارډري
شروع سوې دې. او نن ورځ
پراخه څه ددې کار لپاره کېږي
چې فولکلوریک هنر ته
سراو سامان او د یوځای پانګې
په حیث ارزښت ورکړي.

د فولکلوریک هنر او ادب
خاصه هم دا ده چې هیڅ وخت ئې
موجد او منبع ته را تللونکې معلوم
نه وي او نه ئې څوک پیژني،
نو مونږ ئې ولږ وی، خو اثار ئې
د ونه ځلانده او د وچانه وي چې
د لوړو ادبي شاهکارو پنسټ
ګرځید لای سي.

(۲۹۵مخ پاتې)

# غرنۍ پېغله ...

ته پرې نږدم چې خود کشي وکړي او د رستم تر مرګه وروسته به تل په ژړا ور کريم خان ته ورواده کړم.

سليم خان د کلي څو تنه او غوښتل چې په رستم پسې واخلي او د ايي ولي د لته مريمې فکر وکړ چې ما ته خو خپل ژوند اهميت نلري خو اوس خبره د رستم مرګ ته ورسيدلې ده باید اوس له کريم سره په واده کولو کښې راضي شم مګر خپلې موقع ته به ګورم. واده دوې ورځې وځنډيدی خو چې دواړه ورځې راورسيدې او واده د خلکو په بې حده خوشحالي سره پای ته ورسيدی د ناري سره د سليم خان د کلي خلک په بدرقه د کريم خان تر کوره ولاړه.

مريمه د بحراني حالاتو سره مخامخ وه کله چې د کريم خان کره ورسيده ځان يې پر عصبي ناروغۍ واچاوه او وي ويل چې د څه وخت راپه دې خوا ماته پر عصبي ناروغي پيښه سوې ده هغه داچې زه د انسانانو څخه ډيرېږم او د ناروغي ما ته په کال کښې يو ار پيښيږي او د انسانانو سره خبرې کول او په يوه اطاق کښې ژوند کول زما د ناروغي د زياتوب سبب ګرځي نا سي باید تر يوې مياشتې پورې زما اطاق ته څوک را پرې نږدي څو چې زما اعصاب آرام او صحت مي ښه سي. کريم خان چې دا واوريده د مريمې له اطاق څخه مخ شو او د کور نورو غړو ته هم د اجازه نه وه چې د مريمې اطاق ته ورشي.

مريمې دا کار له دې سببه وکړ چې ګوندې رستم راسي وما ته د دې حال څخه نجات راکړي.

رستم چې ګرم سيمو ته د ځان د يو دوژني لپاره تللی ؤ له دې پيښې څخه ناخبره ؤ. يوه شپه ؤ. رستم بيده ؤ چې ناڅاپه د پښو ټکه ټکه دي له خوبه راويښ کړ وروسته متوجه سو چې يو انسان دی او ده خوا ته راځي. تر ژر مي وه رستم ته سواى کولای چې د ارواښ سړي معلوم کړي چې څوک دی او څه کوي څو چې سړي راورسيدی او په لومړي ضربه ئي رستم پر مځکه وغورځاوه مګر رستم خپله مردانګي له لاسه ورنه کړه. داوغوځيدی او هغه نفر ئي تر لاسو ټينګ کړ څو وي ليدل چې هغه نفر مغل ؤ او د رستم دوژلو په قصد راغلي ؤ د رستم تر ډېر تکليف وروسته د مغل د لاسه خنجر وکيښ او ورته وي ويل «ای ناځوانه ناغوښتل چې د خوب په حال کې ما مړ کړې دا خو ستا مړانه او ناريښتوب نه دی چې په خوب کې ما مړ کړې اوس چې ستا مرګ ما ته دا او بو تر څښلو هم اسانه دی مګر زه دې نه وژنم ځکه چې ته زما کيږدی ته دا ځای دی زه دا دځان مړانه بولم چې په خپله کړدې کښې څوک مړ کړم» مغل چې د رستم دو نه مردانګي ولیده رستم ته ئې وويل «زه نه وم خبر چې ته دداسې پاک وجدان او مړانې خاوند يې» نو د تعظيم سر ئې ورته کښته کړ او د رستم څخه ئې عفوه وغوښتل او ورته وي ويل: زه ستا او د مريمې د پاکې مينې کاميابي له خدایه (ج) غواړم او د په زړه د مريمې لوم پر خول وا نه ظلم ستا د دې مردانګي سبب دی چې ټول خلک ستا څخه خوښ دي او دا خلک چې زما سره راغلي دي برون بي ستا صفت کاوه چې رستم په ښتو او مړانه کښي سارى نلري که ئې رستم وژلو سره قبر له کړي موږ به د سليم خان پر ځای رستم د کلي مشر وټاکو ځکه چې موږ نور د سليم خان ظلمو په تنګ کړي يو».

رستم په دې خبره ډېر خوښ سو کله چې سبا شو ده کسان چې د دوى سره راغلي وه نو له سره د ټول شوره او ټولو فيصله وکړل چې رستم زموږ د کلي مشر دی موږ نور د سليم خان ظلمونه او ملامتونکر امرونه نشو منلاي او ټولو خلکو د رستم ته مبارکي وويل. په دې وخت کښې رستم د ليرې يو نفر پر آس سپور وليدی چې د دوى خوا ته راروان ؤ کله چې راورسيدی، رستم ته ئې وويل چې زه مريمې دا ليږلى يم.

رستم وار خطا سو او وي ويل « څه پيښه ده» قاصد ورته وويل: سليم خان خپله لور يعنې د ستار خان زوى يعني کريم خان ته ور کړې او واده هم پاى ته ورسيدى مريمې خپل وس د واده په نه کولو کښې تمام کړ خو څه ئې نه سواى کولاى. اوس که څه هم دا د کريم خان په کور کښې ده مګر ستا دراتګ په انتظار کښې شپې سبا کوي او کريم خان خپل اطاق ته نه پرېږدي» وروسته تر دې خراشيني خبر رستم خپلو ملګرو ته وويل:

(نور بيا)



د طبیعت یوه ښکلې منظره

د کندهار دولتی مطبعه